


# ځوانانو ته ۱۰۰ نصیحتونه








لیکوال
حافظ محمد انس مدني حفظه الله

ژباړن
شاهد الله عمران




## کتاب پېژندنه:


| | | |
|---|---|---|
| د کتاب نوم | :: | ځوانانو ته سل نصیحتونه |
| لیکوال | :: | حافظ محمد انس مدني حفظه الله |
| ژباړن | :: | شاهد الله عمران |
| خپرندوی | :: | مسلم خپرندویه ټولنه – جلال اباد |
| چاپ وار | :: | دویم |
| کمپوز | :: | مصلح الدین حامد |
| چاپ شمېر | :: | ۱۱۰۰ |
| چاپ لړ | :: | ۱۵۸ |
| چاپ کال | :: | ۱۳۹۶هـ ش |




د ترلاسه کېدو ځایونه

مسلم کتاب پلورنځی

پته: اسحاقزی مارکېټ، لاندینی پوړ، جلال اباد ښار، افغانستان

اړیکشمېرې: ۰۷۰۶۲۶۲۴۶۳-۰۷۷۶۰۰۶۴۱۶

برېښنا لیک: muslim-pub@yahoo.com

# لړلیک

| موضوع | مخ |
| --- | --- |

# لړلیک

موضوع — مخ

## لړلیک

موضوع | مخ

## لړلیک

موضوع | مخ

## لړ لیک

| موضوع | مخ |
|---|---|

# لړلیک

## لړ لیک

| موضوع | مخ |
|---|---|

# لړلیک

| موضوع | مخ |
| --- | --- |

## لړلیک

## لړلیک

موضوع | مخ

## لړلیک

موضوع — مخ

# د ژباړن سريزه

نحمده و نصلي على رسوله الكريم امابعد!

ريښتيا هم چې ځوانان د يوې ټولنې د ملا تير دی او همدا طبقه کولی شي چې د يوې ټولنې د پرمختګ لامل وګرځي. د يو روايت له مخې ځواني بايد مخکې له بوډا والي غنيمت وګڼل شي، دا د ژوند مرحله په ټولومرحلو کې لکه د سروزرو حيثيت لري. انسان په کوچنيوالي کې چې هر څه کوي، په ګټه او تاوان يې نه پوهېږي، خو کله چې د ځوانۍ پړاو ته ورسېږي، نو د چا خبره عقل يې پر ځای شي. ځوانان چې څه کولی شي، هغه بل څوک نه شي کولی، په همدې توګه يو ځوان مسلمان چې څومره د الله تعالی حکمونه پر ځای کولی شي، بوډا له دې کاره ناتوانه وي.

فرض لمونځونه که ځوان وغواړي، په ښه شان يې تر سره کولی شي، خو بوډا شخص د لمانځه حرکات دومره ښه نه شي پر ځای کولی. په دې توګه که د تهجد لمونځ فرض کړو، نو ځوانه طبقه د دې توان لري، چې اداء يې کړي او بوډا چې د هرې ناروغۍ پرې شپه وي، له دې کاره په ډېره اندازه ناتوانه وي.

دغه کتاب چې اوس تاسو په خپلو ښايسته لاسونو کې نيولی، د اسلامي نصيحتونو يوه ټولګه ده، نصيحت زموږ او ستاسو په ټولنه کې له ډېرې پخوا مودې راهيسې رواج لري خلک يې په خپلو خبرو کې د استدلال په ډول هم را اخلي او خپله خبره پرې پخوي، خو د دې نصيحتونو او د هغو نصيحتونو ترمنځ، چې زموږ او ستاسو په ټولنه کې مروج دي، سره توپير شته، ځکه چې دا د رسول الله صلی الله عليه وسلم خواږه نصيحتونه دي، چې په عملي کولو يې انسان د برياليتوب تر بريده رسېږي. ز موږ د مشرانو ( د ټولنې مشران ) نصيحتونه که هر څومره پاخه وي، ځيني داسې

به هم وي چې زیاتی او کمی به لري، خو دا نصیحتونه چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم له مبارکې خولې وتلي، د ذرې هومره کمی زیاتی نه لري.

خپلې خبرې په همدې ځای کې رانغاړم، خو په پای کې له مسلم خپرندویه ټولنې یوه نړۍ مننه کوم، چې دې اسلامي کتاب ته یې د چاپولو غاړه کېښوده او د خپلو مسلمانانو ورونو او خویندو تر کوتو یې ورساوه.

د ځوانانو د اصلاح او د اسلامي بیرغ د رپانده ساتلو په هېله

شاهدالله عمران

# نبوي احادیث

**لومړی حدیث:**

له ابو رقیه تمیم بن اوس داري رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

الدِّينُ النَّصِيحَةُ، قُلْنَا لِمَنْ قَالَ: لِلَّهِ وَلِكِتَابِهِ وَلِرَسُولِهِ وَلأَئِمَّةِ الْمُسْلِمِينَ وَعَامَّتِهِمْ.

ژباړه: دین د خیر خواهۍ کولو نوم دی. موږ پوښتنه وکړه: د چا د خیرخواهۍ؟

رسول الله صلی الله علیه وسلم په ځواب کې وفرمایل:

۱- د الله تعالی

۲- د هغه دکتاب

۳- د هغه د رسول

۴- د مسلمانانو دحاکمانو

۵- د عامو مسلمانانو

**دویم حدیث:**

په معجم الطبراني کې د حذیفه رضي الله عنه په روایت رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

مَنْ لَمْ يَهْتَمّ بِاَمْرِالْمُسْلِمِينَ فَلَيْسَ مِنْهُمْ.

ژباړه: چاچې مسلمانانو د چارو انتظام ونه کړ (نه يې خيرخواهي وکړه او نه يې د هغې ساتنه) نو دا زموږ له ډلې نه دی.

او څوک چې سهار او ماښام د الله تعالی د هغه د رسول، د مسلمانانو د مشرانو او عامو مسلمانانو په خیرخواهۍ کې نه تېروي، نو هغه هم د

رسول الله صلی الله علیه وسلم له ډلې څخه نه دی

دریم حدیث:

انس بن مالک رضي الله عنه روایت کوي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

لاَ يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ حَتَّى يُحِبَّ لأَخِيهِ مَا يُحِبُّ لِنَفْسِه.

ژباړه: په تاسو کې یو شخص تر هغې بشپړ مسلمان نه شي کېدای، چې څه یې د ځان لپاره خوښ کړي وي، هغه د بل مسلمان لپاره خوښ نه کړي

څلورم حدیث:

جریر بن عبدالله البجلي رضي الله عنه روایت کوي:

بَايَعْتُ رَسُولَ اللهِ صلی الله علیه وسلم عَلَى إِقَامِ الصَّلاَةِ، وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ وَالنُّصْحِ لِكُلِّ مُسْلِمٍ.

ژباړه: ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د لمانځه په پابندۍ، د زکات په ورکړې او له هر مسلمان سره په خیرخواهۍ بیعت کړی دی

# نصیحت څه شی دی ؟

زما درنو ورونو!

خیرخواهي او وفا دا معنا نه لري، چې یو څوک دې په ناروا ډول د بل چا په ورځنیو چارو او د ژوند په کارونو کې لاسوهنه وکړي یا د چا احساسات ټپي کړي، یا د چا زړه ازارکړي یا د چا شان او رتبه سپکه کړي، یا دا چې د نصیحت په نامه په بل چا خپله رتبه پورته کړي، لکه څرنګه چې ځینې خلک همداسې فکر کوي، نه هېڅکله نه!

نصیحت خو له دې لوړ مفهوم لري، نصیحت د مینې، ورورګلوۍ او وفا کولو نښه ده.

هو! نصیحت د اسلام په سپېڅلي دین کې له ځلانده اصولو څخه یو اصل دی، چې هدف ترې غوره اخلاق، غوره اعمال، د حقونو ساتنه او د انصاف پر ځای کول دي. په همدې اساس د مومنانو ترمنځ په شرعي حدودو کې د ورورګلوۍ فضا رامنځته کېږي او برسېره پر دې په بدو اخلاقو، ناروا کړنو، باطلو نظریاتو او له ځانه په جوړو شویو قوانینو ولاړ نظام له خاورو سره خاورې کېږي. له دې امله دا ډېره ضروري خبره ده، چې باید نصیحت د مناظرې، خلکو ته د خپلې پوهې ښودلو او بحثونو په ډول نه وي، نصیحت باید له الزامونو او بحثونو ډک نه وي. د نصیحت مقصد باید دا هم نه وي، چې مقابل لوری دې خاموشه کړای شي، بلکې په دې کې باید خوږې خبرې، غوره اخلاق او هغه ډول معقول او په زړه پورې دلیلونه پراته وي، چې د اورېدونکي زړه ته کوز شي

# د یوې کامیابه ټولنې جوړښت

درنو ورونو!

لکه څرنګه چې تاسو ته هم څرګنده ده، یوه کامیابه ټولنه تر هغې نه شي رامنځته کېدای، چې خلک یې یو د بل لپاره د خیرخواهی او ښېګنې درد ونه لري، له خپلې اصلاح سره د نورو ورونو د اصلاح فکر هم ورسره وي کله چې یو شخص د خپل ورور لپاره نېکې هیلې او غوښتنې په خپل زړه کې ولري، نو ایا په داسې ټولنه کې به فرېب، فتنه، لوټل او وژنه رامنځته شي؟ هېڅکله نه، په دې ټولنه کې به امن، ورورګلوي او د ښه ژوند فضا پرته وي. او یوه داسې ټولنه به رامنځته شي، چې قرانکریم یې داسې نقشه ښودلې ده:

﴿ بَلۡدَةٞ طَيِّبَةٞ وَرَبٌّ غَفُورٞ ﴾. (سباء:۱۵۳٤)

ژباړه: سپېڅلی ښار او ښونکی رب.

نصیحت کول یو داسې مسولیت دی، چې د ستر هدف د ترلاسه کولو لپاره هر مسلمان ته لازم دي، د خپل مسلمان ورور خیرخواهي وکړي، مسلمانانو ته د اخرت د اصلاح لپاره سمه لارښوونه وکړي، د نېکی حکم ورته وکړي او له بدو کارونو یې منعه کړي.

# نصیحت باید ومنل شي

زما خوریو ورونو!

موږ ته په کار دي، چې باید نصیحت په پراخ تندي ومنو او زړه پرې تنګ نه کړو. په الله تعالی قسم! ناصح خو تاسو سره د الله تعالی لپاره مینه کوي ددې هیله لري، چې تاسو په دنیا او اخرت کې بریالیتوب ترلاسه کړئ او ددې وېره لري، چې له الهي عذاب څخه وژغورل شئ. نو ځکه تاسو باید په پراخه سینه د هغه نصیحتونه ولولئ او په خپل عملي ژوند کې ورته ځای ورکړئ.

خوریو ورونو!

باید په یاد مو وي، چې کله تاسو د یو ناصح نصیحتونه قبول کړئ. نو دا د الله تعالی او دهغه د رسول د پیروۍ دلیل دی او له نصیحت څخه سر غړونه په حقیقت کې د رب العلمین او د هغه د پیغمبر د سنتو له انکار سره سمون خوري

## د نفس د اصلاح کولو لومړی غوښتنه

خوریو ځوانانو ورونو!

یوه بله ضروري خبره دا ده چې نفس پرې اصلاح کېږي، تر ټولو مخکې باید په خپلو عیبونو نظر واچول شي، هسې نه چې خپل عیبونه غوره او ښایسته وګڼل شي. په دې ډول که وغواړې چې زما اعمال دې سم وي، خلک یې هم خوښ کړي او پرې خوشحاله هم شي، نو تر ټولو لومړی طریقه دا ده، چې شخص پر خپلو ګناهونو اعتراف وکړي او له تکبر څخه ځان لرې وساتي، ځکه کوم شخص چې په زړه کې د غوخ د دانې هومره کبر ولري، هغه به هېڅکله جنت ته داخل نه شي

د ګناه له اعتراف وروسته باید سمدستي له هغې څخه ډډه وشي، د سختې

پښیمانۍ اظهار وشي او په زړه کې داسې کلکه اراده وکړي، چې ان شاء الله په راتلونکي کې به له دې څخه ځان ساتي.

## د ناصح لپاره د دعا ګانو ډالۍ

ما ګناهګار بنده تل په دعا ګانو کې یادوئ، که چېرې تاسو د ناصح غایبانه شکریه اداء کړئ او دعا ورته وکړئ، نو دا به د دې دلیل وي، چې تاسو د ډېرې مهربانۍ خاوندان یاست، په بل صورت ناصح در څخه دکوم شي تمه نه کوي.

مَنْ لَمْ يَشْكُرِ النَّاسَ لَمْ يَشْكُرِ اللهَ.

څوک چې د خلکو شکر اداء نه کړي، هېڅکله به د الله تعالی شکر اداء نه کړي.

په پای کې له ټولو ملګرو او په ځانګړي ډول له هغه چا چې د دې کتاب په چاپ کې یې راسره هر ډول مرسته کړې، مننه کوم الله تعالی دې پرې ورحمیږي.

انه سمیع مجیب امین یا رب العلمین و صلی الله تعالی علی نبینا و حبیبنا و اممنا محمد و علی اله واصحابه و اتباعه و بارک وسلم و اخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمین.

حافظ محمد انس مدني

۲ جمادي الاولی ۱٤۲۷ هـ

D – madni ۲ @ yahoo com

# ۱ - د سروزرو نصیحتونه

زما خوږو ورونو!

په لاندې څو کرښو کې د دنیا او اخرت څو داسې نصیحتونه ذکر کېږي، چې په سرو زرو د لیکلو وړتیا لري.

درنو ورونو!

له تاسو په ډېر درنښت غوښتنه کوو، چې دا نصیحتونه په پوره غور سره ولولئ او په عملي بڼه يې د رب العلمين بې شمېره نعمتونه تر لاسه کړئ، بل دا چې هسې نه عمل پرې ونه کړئ او د دوزخ خشاک و ګرځئ. بې شکه نېکمرغه انسان هغه دی، چې د نورو نصیحتونو ته غوږ ونیسي او عمل پرې وکړي، او بد مرغه شخص به له هغه چا بل څوک وي، چې له ګټورو شیانو څخه ډډه کوي.

**د کلمې طیبې شرطونه:**

زماخوږو ورونو!

الله تعالی دې پر تاسو ورحمېږي. پوه شئ، چې کلمه طیبه (لا اله الا الله محمد رسول الله) د اسلام کنجي ده او تر ټولو لومړی بنسټیز رکن دی، یعنې د زړه له کومې د دې خبرې ګواهي ورکول، چې الله تعالی یو دی، بل معبود نه شته او محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم د الله تعالی پیغمبر دی. همدارنګه دا کلمه به تاسو ته هغه وخت ګټوره تمامه شي، چې کله لاندې شرطونه بشپړ کړئ.

**لومړی شرط:** زده کړه:

د کلمې طیبې معنا پېژندل، په دې معنا کې دوه شیان پراته دي، لومړی د باطلو خدایانو نفې او دویم یوازې د رب العلمین د الوهیت ثبوت.

الله تعالی فرمايي:

﴿ فَاعْلَمْ أَنَّهُ لَاۤ إِلَٰهَ إِلَّا اللَّهُ ﴾ .(محمد: ۱۹).

ژباړه: ای پیغمبره! په دې خبره پوه شه، چې له الله تعالی پرته بل څوک د عبادت وړ نه شته.

په دې اړه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

مَنْ مَاتَ وَهُوَ يَعْلَمُ أَنَّـهُ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ، دَخَلَ الْجَنَّةَ.[1]

ژباړه: څوک چې په داسې حال کې مړ شو، چې د لااله الا الله په معنا يې ځان پوه کړی و او عمل يې پرې کړی و، هغه به جنت ته داخل شي.

**دویم شرط : باور او یقین:**

دویم شرط داچې د کلمې په معنا بشپړ یقین درلودل او په دې اړه له هر ډول شک څخه ځان ساتل.

الله تعالی فرمايي:

﴿ إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ لَمْ يَرْتَابُوا وَجَاهَدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ۚ أُولَٰئِكَ هُمُ الصَّادِقُونَ ﴾ .(الحجرات:۱۵)

ژباړه: مؤمنان هغه کسان دي، چې پر الله تعالی او د هغه پر رسول بشپړ باور او ایمان لري، بیا شک او شبه نه کوي، په خپلو مالونو او ځانونو جهاد د الله تعالی په لار کې کوي، همدا خلک په خپله دعوی کې رښتیني دي.

له ابو هريرة رضي الله عنه څخه په یو حدیث کې نقل شوي:

مَنْ لَقِيتَ مِنْ وَرَاءِ هَذَا الْحَائِطَ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ مُسْتَيْقِنًا بِهَا

---

(۱) مسند احمد۳/۱۱.

قَلْبُهُ، فَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ.[۱]

ژباړه: څوک چې د لا اله الا الله ګواهي د زړه له کومي ورکړي، نو هغه ته د جنت زيرى ورکړئ

## درېیم شرط: اخلاص

د کلمې د معنا له پېژندلو او له باور وروسته دا خبره ډېره ضروري ده، چې عبادت یواځې د الله تعالی لپاره وشي او له هغه سره په هېڅ شي کې شریک ونه ګرځول شي. همدارنګه عبادت یوائې د الله تعالی د رضا لپاره وکړای شي او باید په دې کې ځان ښودنه او شهرت مقصد نه وي

الله تعالی فرمايي

﴿ وَمَآ أُمِرُوٓاْ إِلَّا لِيَعْبُدُواْ ٱللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ ﴾ .(البینه:۵).

ژباړه: هغوی ته خو یواځې د دې حکم شوی دی، چې یواځې د الله تعالی عبادت وکړي او یواځې د هغه لپاره دین خالص کړي.

د ابو هريرة رضي الله عنه په روايت رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي

سْعَدُ النَّاسِ بِشَفَاعَتِي يَوْمَ القِيَامَةِ مَنْ قَالَ: لاَ إِلَهَ إِلَّا اللهُ، خَالِصًا مِنْ قِبَلِ نَفْسِهِ.[۲]

ژباړه: د قیامت په ورځ به تر ټولو زیات مستحق زما د شفاعت هغه شخص وي، چې په پوره اخلاص يې د لا اله الا الله کلمه ويلې وي.

## څلورم شرط: رښتینولي

د کلمې طیبې معنا په رښتینې ډول منل، ځکه په ښکاره ډول د کلمې منل او په زړه کې انکار خو منافقت دی، له همدې امله د ژبې او زړه تر منځ

---

(۱) مسند احمد ۲/۳۷۳.

(۲) صحیح المسلم.

همغړي يو ضروري تكى دى. كه چيرې داسې نه وي، نو بيا د كلمې گواهي كوم اعتبار نه لري.
الله تعالى فرمايي:

﴿ فَلَيَعْلَمَنَّ اللَّهُ الَّذِينَ صَدَقُوا وَلَيَعْلَمَنَّ الْكَاذِبِينَ ﴾ . (العنكبوت : ۳)

ژباړه : بې شكه د الله تعالى به هغه خلک هم وپيژني، چې رښتيا وايي او هغه خلک هم چې درواغجن دي.
همدارنګه فرمايي:

﴿ وَالَّذِي جَاءَ بِالصِّدْقِ وَصَدَّقَ بِهِ أُولَٰئِكَ هُمُ الْمُتَّقُونَ ﴾ (الزمر : ۳۳)

ژباړه : او څوک چې له رښتينولۍ سره راغی او د هغې تصديق يې وكړ، نو همدا خلک پرهيزگاران دي.
له انس رضي الله عنه څخه روايت دى، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:
مَا مِنْ أَحَدٍ يَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ صِدْقًا مِنْ قَلْبِهِ إِلاَّ حَرَّمَهُ اللَّهُ عَلَى النَّارِ.[1]
ژباړه: چا چې د كلمې طيبې گواهي له زړه څخه په رښتيني ډول وركړه، نو الله تعالى به هغه شخص په اور حرام كړي.
**پنځم شرط : مينه:**
له مينې څخه مطلب دا دى، چې له هر څه دې ستاسو په زړه كې د الله مينه ډيره پرته او د همده په مينه مو زړه اباد وي.
الله تعالى فرمايي:

---

(۱) صحيح البخاري.

﴿ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَشَدُّ حُبًّا لِّلّٰهِ ﴾. (البقره: ۱۵۷).

ژباړه: کوم کسان چې مؤمنان دي، هغوی له الله تعالی سره له هر شي ډېره مينه لري.

همدارنګه فرمايي:

﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَنْ يَّرْتَدَّ مِنْكُمْ عَنْ دِيْنِهٖ فَسَوْفَ يَاْتِي اللّٰهُ بِقَوْمٍ يُّحِبُّهُمْ وَيُحِبُّوْنَهٗٓ ﴾. (المايده: ۵۴)

ژباړه: ای مؤمنانو! کوم شخص چې له تاسو له خپل دين څخه واوړي، نو ډېر ژر به الله تعالی يو داسې قوم راولي، چې الله تعالی به ورسره مينه کوي او هغوی به هم له الله تعالی سره مينه کوي.

له انس رضي الله عنه څخه په يو بل حديث کې راغلي:

ثَلاَثٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ وَجَدَ حَلاَوَةَ الإِيمَانِ أَنْ يَكُونَ اللهُ وَرَسُولُهُ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِمَّا سِوَاهُمَا.[۱]

ژباړه: درې خويونه داسې دي، چې خاوند يې د ايمان په خوند پوهېږي، لومړی دا چې له الله تعالی او د هغه له رسول سره تر ټولو زياته مينه وساتل شي.

شپږم شرط: غاړه ايښودل:

په ښکاره او پټه دواړو حالاتو کې د کلمې پيروي، د الله تعالی د حکم منل او د شريعت په پابندۍ عملي کول. الله تعالی فرمايي:

﴿ بَلٰى مَنْ اَسْلَمَ وَجْهَهٗ لِلّٰهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ فَلَهٗٓ اَجْرُهٗ عِنْدَ رَبِّهٖ وَلَا خَوْفٌ

(۱) صحيح البخاري، الايمان، باب حلاوة الايمان، حديث: ۱۶.

عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ﴾ (البقرة : ۱۱۲)

ژباړه: واورئ! څوک چې د زړه له اخلاص سره ځان الله تعالی ته وسپاري او هغه نېک عمله وي، نو د ده لپاره اجر دی، نه به پرې کومه وېره وي او نه به غمجن شي.

**اووم شرط : قبلول**

د کلمې لازمي شیان د زړه له کومې قبلول، په دې ډول چې ټول عبادتونه، عقیدې او معاملې یوائې د الله تعالی په خاطر تر سره شي او له ټولو معبودانو څخه ډډه وشي.

الله تعالی فرمایي:

﴿إِنَّهُمْ كَانُوْا إِذَا قِيْلَ لَهُمْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ يَسْتَكْبِرُوْنَ وَ يَقُوْلُوْنَ أَئِنَّا لَتَارِكُوْا اٰلِهَتِنَا لِشَاعِرٍ مَّجْنُوْنٍ بَلْ جَاۤءَ بِالْحَقِّ وَ صَدَّقَ الْمُرْسَلِيْنَ﴾.

( صافات : ۳۵ – ۳۷ )

ژباړه: دا هغه کسان دي، چې کله دوی ته وویل شي له الله تعالی پرته بل څوک د عبادت وړ نه شته، نو دوی سرغړونه کوي او وايي، چې ایا موږ د یو لېوني شاعر په خبرو خپل خدایان پرېږدو ؟ نه نه ! بلکې نبي خو له رښتیني دین سره راغلی دی او ټول پېغمبران رښتیني مني.

کرانه ورو ره !

یاد ساته، د شهادت د کلمې د صحت لپاره پورته شرطونه دومره ضروري دي، چې اندازه یې نه شته، الله تعالی دې موږ ته پرې د عمل کولو توان راکړي.

# ۲- د اسلام ماتوونکي

زما خوېږو ورونو!

لکه څرنګه چې داسې شیان هم شته، چې اودس پرې ماتېږي او د بیا اودس کولو اړتیا پېښېږي، همدارنګه ځینې چارې داسې هم شته. چې کوونکی یې له اسلام څخه وځي، ټول نېک اعمال یې له منځه ځي او د تل لپاره دوزخي ګرځي، خو هغه اشخاص له دې څخه مستثنی دي. چې توبه وباسي او له سره اسلام قبول کړي، نو الله تعالی ټول مخکیني ګناهونه ورته ببښي د اسلام ماتوونکو ته په لاندې ډول اشاره کوو

**لومړی: شرک:**

په عبادتونو کې کوم عبادت له الله تعالی پرته بل چا لپاره کول. دمثال په توګه : له غیرالله څخه مرسته غوښتل، غیرالله د مرستې لپاره رابلل. د غیرالله لپاره حلاله کول یا نذر منل او د غیر الله لپاره رکوع او سجده کول الله تعالی فرمایي:

﴿ اِنَّ اللّٰهَ لَا یَغْفِرُ اَنْ یُّشْرَكَ بِهٖ وَ یَغْفِرُ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ لِمَنْ یَّشَآءُ ۚ وَ مَنْ یُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدِ افْتَرٰۤی اِثْمًا عَظِیْمًا ﴾. (النساء : ۴۸)

ژباړه: الله تعالی هغه شخص هېڅکله نه ببښي، چې له ده سره شریک ونیسي او پرته له دې چې وغواړي، ببښي یې او چا چې له الله تعالی سره شرک وکړ، نو هغه په لویه ګمراهۍ کې ولوېده.

همدارنګه فرمایي:

﴿ اِنَّهٗ مَنْ یُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدْ حَرَّمَ اللّٰهُ عَلَیْهِ الْجَنَّةَ وَ مَاْوٰىهُ النَّارُ ؕ وَ مَا لِلظّٰلِمِیْنَ مِنْ اَنْصَارٍ ﴾. (المایده : ۷۳)

ژباړه: بې شکه څوک چې له الله تعالی سره شریک ونیسي، نو الله تعالی پر هغه جنت حرام ګرځولی، ځای یې دوزخ او د ظالمانو مرستندوی به نه وي.

جابر بن عبدالله رضي الله عنه وایي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

مَنْ لَقِيَ اللَّهَ لاَ يُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا دَخَلَ الْجَنَّةَ وَمَنْ لَقِيَهُ يُشْرِكُ بِهِ دَخَلَ النَّارِ.[1]

ژباړه: چا چې د رب العالمین سره په داسې حال کې لیدنه وکړه، چې شرک یې نه وي کړي، نو هغه به جنت ته ننوځي او څوک چې په داسې حال کې له رب العلمین سره ووینې، چې له ده سره یې شریک ګرځولی و، هغه به دوزخ ته ځي.

**دویم: د خالق او مخلوق تر منځ واسطه ټاکل:**

چا چې د خپل ځان او د الله تعالی تر منځ واسطه جوړه کړه، له هغه یا د هغه په واسطه یې دعا وکړه، شفاعت یې وغوښت او پردې یې باور وکړ، نو الله تعالی یې په اړه داسې فرمایي:

﴿وَ يَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَضُرُّهُمْ وَ لَا يَنْفَعُهُمْ وَ يَقُوْلُوْنَ هٰٓؤُلَآءِ شُفَعَآؤُنَا عِنْدَ اللّٰهِ ؕ قُلْ اَتُنَبِّـُٔوْنَ اللّٰهَ بِمَا لَا يَعْلَمُ فِي السَّمٰوٰتِ وَ لَا فِي الْاَرْضِ ؕ سُبْحٰنَهٗ وَ تَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ۝﴾. (یونس:۱۸).

ژباړه: او دا خلک د الله تعالی په پرېښودو د داسې شیانو عبادت کوي، چې نه دوی ته کوم زیان رسولی شي او نه ګټه او دا هم وایي، چې دا زموږ

---

(۱) صحیح مسلم: الایمان، باب من مات لایشرك بالله شیئاً.

او د خدای تر منځ سفارش کوي. ته ورته ووایه چې ایا تاسو الله تعالی ته د داسې کوم شي خبر ورکولی شئ، چې الله تعالی ته څرګند نه وي، نه په اسمانونو او نه په ځمکه کې، الله تعالی د دې خلکو له شرک څخه پاک او د لوړ شان څښتن دی.

## دریم: د حق انکار کوونکو طرف ته مایله کېدل:

د کلمې د اعتبار موده هغه وخت هم له منځه ځي، چې کافر، کافر ونه ګڼل شي او یا د هغه په کفر کې شک وکړای شي او یا هم د هغه مذهب او دین د اسلام په مقابل کې روا وګڼل شي.

الله تعالی فرمایي:

﴿ اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ اُوْتُوْا نَصِيْبًا مِّنَ الْكِتٰبِ يُؤْمِنُوْنَ بِالْجِبْتِ وَ الطَّاغُوْتِ وَ يَقُوْلُوْنَ لِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا هٰۤؤُلَآءِ اَهْدٰى مِنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا سَبِيْلًا۝ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَعَنَهُمُ اللّٰهُ ؕ وَ مَنْ يَّلْعَنِ اللّٰهُ فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ نَصِيْرًا۝ ﴾. (النساء: ۵۱-۵۲).

ژباړه: ایا هغه خلک دې ونه لیده، چې د کتاب څه برخه ورکړل شوې وه، پر بتانو او باطلو خدایانو یې باور درلود او د کافرانو په حق کې به یې دا خبره کوله، چې دا له مؤمنانو څخه ډېر په سمه لار دي، همدا هغه خلک دي، چې الله تعالی پرې لعنت ویلی، الله تعالی چې پر چا لعنت ووایي، نو ته به د هغوی هېڅوک مرستندوی ونه مومې.

## څلورم: اسلامي لارښوونو ته بد کتل:

اسلام یا ځیني هغه لارښوونې ناخوښه ګڼل، چې د هغې پر اثبات د علماوو اتفاق وي. الله تعالی فرمایي:

﴿ وَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَتَعْسًا لَّهُمْ وَ اَضَلَّ اَعْمَالَهُمْ۝ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَرِهُوْا مَآ

اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاَحْبَطَ اَعْمَالَهُمْ﴾. (محمد:۸-۹).

ژباړه: او هغه خلک چې کافران شو، تباه شول، دا له دې امله چې د الله تعالی په نازل شویو احکامو یې ناخوښي ښکاره کړه، نو الله تعالی هم د هغوی عملونه برباد کړه.

**پنځم: د اسلام شعایرو پورې ملنډې وهل:**

قرانکریم، احادیثو یا په اسلام کې کوم اجماع شوي حکم پورې ملنډې وهل، یا د رب العلمین او د هغه رسول پورې بدې ردې ویل، یا هغه سپکول. الله تعالی فرمایي:

﴿قُلْ اَبِاللّٰهِ وَ اٰيٰتِهٖ وَ رَسُوْلِهٖ كُنْتُمْ تَسْتَهْزِءُوْنَ ۝ لَا تَعْتَذِرُوْا قَدْ كَفَرْتُمْ بَعْدَ اِيْمَانِكُمْ﴾. (التوبه:۶۵-۶۶).

ژباړه: ووایه ای پیغمبره! ایا تاسو الله تعالی، د هغه رسول او د هغه ایتونو پورې ملنډې وهئ؟ بهانې مه جوړوئ، بې شکه تاسو خو له ایمان وروسته کافران شوي یاست.

**شپږم: د دین د دښمنانو ملګرتیا:**

د مسلمانانو پر ضد د کافرانو او مشرکانو مرسته کول.

الله تعالی فرمایي:

﴿لَا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُوْنَ الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ۚ وَ مَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللّٰهِ فِيْ شَيْءٍ اِلَّآ اَنْ تَتَّقُوْا مِنْهُمْ تُقٰىةً ۗ وَ يُحَذِّرُكُمُ اللّٰهُ نَفْسَهٗ ۗ وَ اِلَى اللّٰهِ الْمَصِيْرُ﴾. (ال عمران:۲۸).

ژباړه: مؤمنانو ته په کار دي، چې له مؤمنانو پرته دې له کافرانو سره

ملګرتیا نه کوي او چا چې داسې وکړه، نو الله تعالی د هغه ملاتړ نه کوي، مګر دا چې له هغوی څخه ځان ساتي او الله تعالی تاسو د خپل نفس (له عذاب) څخه وېروي، همدې الله تعالی ته به ورګرځئ.

**اووم: په دین کې مرتد کېدل:**

په دې عقیده درلودل، چې دا هم کېدای شي یو شخص کوم بل دین هم خپلولای شي. الله تعالی فرمایي:

﴿وَ مَنْ يَّبْتَغِ غَيْرَ الْاِسْلَامِ دِيْنًا فَلَنْ يُّقْبَلَ مِنْهُ ۚ وَ هُوَ فِي الْاٰخِرَةِ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ۝﴾. (ال عمران:۸۵).

ژباړه: چا چې له اسلام پرته بل دین غوره کړ، نو په اخرت کې به له سترو زیان موندونکو څخه وګرځي.

**اتم: د دین پر احکامو عمل نه کول:**

د الله تعالی له دین څخه به بشپړ ډول ډډه کول، نه هغه زده کول او نه عملي جامه وراغوستل، الله تعالی فرمایي:

﴿وَ مَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ ذُكِّرَ بِاٰيٰتِ رَبِّهٖ ثُمَّ اَعْرَضَ عَنْهَا ؕ اِنَّا مِنَ الْمُجْرِمِيْنَ مُنْتَقِمُوْنَ ۝﴾. (السجده:۲۲).

ژباړه: له هغه چا به ډېر ظالم څوک وي، چې د الله تعالی د ایتونو وعظ ورته وشي او هغه ترې مخ واړوي، بې شکه موږ له ګناهګارو څخه غچ اخلو.

**نهم: ناوړه کارونه ترسره کول:**

د شیطاني او نافطري کارونو په غوره کولو د جادو عمل کول، اګر که د خاوند او ښځې ترمنځ بېلتون وي یا بل څه، د دې عمل مرتکب له اسلام څخه وځي. الله تعالی فرمایي:

﴿ وَ مَا يُعَلِّمٰنِ مِنْ اَحَدٍ حَتّٰى يَقُوْلَاۤ اِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ فَلَا تَكْفُرْ ﴾. (البقره:۱۰۲).

ژباړه: او دې دواړو پرېښتو (هاروت او ماروت) چې به چا ته لارښوونه کوله، نو لومړی به يې پردې خبره خبروه، چې موږ يوازې د ازمېښت لپاره راغلي يو، نو پس تاسو کفر مه کوئ.

**لسم: په حلالو او حرامو کې د نفس پيروي کول:**

د الله تعالى او د هغه د رسول د حراموشيانو حلالول، لکه د سود حلال ګڼل يا دا چې زنا، شراب او جواري او داسې نور حلال ګڼل. الله تعالى فرمايي:

﴿ وَ لَا تَقُوْلُوْا لِمَا تَصِفُ اَلْسِنَتُكُمُ الْكَذِبَ هٰذَا حَلٰلٌ وَّ هٰذَا حَرَامٌ لِّتَفْتَرُوْا عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ اِنَّ الَّذِيْنَ يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ لَا يُفْلِحُوْنَ ۝ مَتَاعٌ قَلِيْلٌ وَّ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝ ﴾. النحل: ۱۱۶-۱۱۷).

ژباړه: هېڅ يو شي ته مه واياست، چې دا حلال دي او دا حرام دي، د دې لپاره چې پر الله تعالى دروغ وواياست، درواغ او بهتان تړونکي هېڅکله نه شي بريالي کېدای، دوی ته به ډېره لږه ګټه په لاس ورشي، او د دوی لپاره دردونکی عذاب دی.

# ۳- ایمان څه ته وایي ؟

**زما خوږو ورونو !**

ایمان ددې نوم نه دی، چې يو شخص دې په ژبه اقرار وکړي، چې فلانی حکم منم، بلکې ایمان د دریو شیانو مجموعه ده :

۱- قول باللسان : په ژبه اقرار کول.

۲- تصديق بالجنان : د زړه له کومې ګواهي يعنې عقيده پخول او قوي کول.

۳- عمل بالارکان : دايمان په ارکانو عمل کول.

تاسو پر دې فکر وکړئ، چې يو مسلمان په ژبه د دې اقرار کوي، او د زړه له کومې هم د دې ګواهي ورکوي، چې بايد لمونځ اداء شي، خو چې د مؤذن اواز واوري، نو د دنيا مشغولتيا نه پرېږدي، چې لمانځه ته ولاړ شي، ايا داسې شخص ته مؤمن ويل سم دي ؟ کېدای شي چې ځواب مو نه وي او دا ځکه، چې ده دايمان درېيمه برخه نه ده پوره کړې، په دې ډول د دين نور احکام هم ومنه لکه : ږيره پرېښودل، لباس او داسې نور.

الله تعالی فرمايي :

﴿ قَالَتِ الۡأَعۡرَابُ اٰمَنَّا ۖ قُلۡ لَّمۡ تُؤۡمِنُوۡا وَ لٰكِنۡ قُوۡلُوۡۤا اَسۡلَمۡنَا وَ لَمَّا يَدۡخُلِ الۡاِيۡمَانُ فِىۡ قُلُوۡبِكُمۡ‌ ؕ وَ اِنۡ تُطِيۡعُوا اللّٰهَ وَ رَسُوۡلَهٗ لَا يَلِتۡكُمۡ مِّنۡ اَعۡمَالِكُمۡ شَيۡـًٔـا‌ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ‏ ﴾ . (الحجرات:۱٤).

ژباړه: بانده چيانو وويل چې موږ ايمان راوړی دی، ته ورته ووايه، چې تاسو ايمان نه دی راوړی، بلکې داسې ووایاست، چې موږ منونکي يو، ځکه تر دې پورې ستاسو زړونو ته ايمان ننوتی نه و، که چېرې تاسو د الله تعالی او د هغه د رسول پيروي وکړئ، نو الله تعالی به ستاسو له عملونو

ښځه هېڅ کم نه کړي، بې شکه الله تعالی ښښونکی او مهربان ذات دی.

**ایمان تر ټولو ارزښتناکه خزانه ده:**

درنو ورونو!

په نړۍ کې تر ټولو قیمتي شی ایمان دی، د همدې قیمتي شي د ساتنې لپاره هجرت هم روا ګڼل شوی، یعنې که یو شخص دې ته اړ شي، چې خپله کورنۍ، خپلوان، ځمکه، ښځه او بچي پرېږدي، نو باید دا ټول پرېږدي او ایمان خوندي کړي. الله تعالی دې موږ ته دایمان د ساتلو توان را په برخه کړي.

- خوږو ورونو! باید هېر یې نه کړئ، چې له فتنو ډکه په دې زمانه کې داسې بې شمېره شیان شته، چې پر ایمان بده اغېزه کوي، راځئ له دې ډډه وکړو او د الله تعالی او دهغه د رسول په پیروۍ کې خپل ایمان تازه وساتو او په هغې کې زیاتوالی راولو، ځکه چې ایمان کمزوری کېږي هم او زیاتېږي هم او ساتنه یې تر ټولو ډېره ضروري ده.

**ایمان کمزوری کېږي او زیاتېږي**

که غواړئ چې د ایمان د کموالي او زیاتوالي تجربه وکړئ، نو یو ځلې له یو درد مند عالم څخه درس واورئ، د اسلامي امت حالت او د اسلام غوښتنې، د جنت خوږې خبرې د دوزخ وعیدونه په غور سره واورئ، بیا وګورئ چې زړه مو څومره نرم شوی دی. هدیرې ته ولاړ شئ او بیا هم تجربه وکړئ، په همدې ډول یو ځلې د سندرو محفل، د فلمونو تصور په زړه کې راولئ او بیا وګورئ چې زړه مو په کوم حالت کې دی.

ای زما خوږو ورونو!

د دې قیمتي خزانې د له منځه تلو څخه ووېرېږئ او له خپل ځان څخه ډېره د دې په ساتنه کې هڅه وکړئ

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

مَا مِنَ الْقُلُوبِ قَلْبٌ، إِلَّا وَلَهُ سَحَابَةٌ كَسَحَابَةِ الْقَمَرِ، بَيْنَا الْقَمَرُ مُضِيءٌ إِذْ عَلَتْ عَلَيْهِ سَحَابَةٌ، فَأَظْلَمَ إِذْ تَجَلَّتْ عَنْهُ فَأَضَاءَ.[1]

ژباړه: لکه څرنګه چې د سپوږمۍ پر وړاندې وريځې راځي، په دې دول په هر زړه هم وريځې راځي، تاسو وينئ چې سپوږمۍ رڼا کوي، خو کله چې پرې د وريځو يوه برخه راشي، نو هغه تياره کړي، بيا کله چې دا د وريځو برخه ترې لرې شي، نو سپوږمۍ بېرته خپله رڼا ورکوي

مطلب دا چې لکه څرنګه پر سپوږمۍ وريځ راشي او د هغې رڼا کمزورې کړي، همدارنګه د رب العلمين په سرغړونه هم يو مسلمان د عبادت خوند نه شي موندلی او له الله تعالی سره يې مينه کمېږي

بيا کله چې دغه شخص توبه وباسي او د خپل ايمان د تازه والي په خاطر الله تعالی ته رجوع وکړي، نو بېرته يې ايمان خپله روښنايي ورکوي. الله تعالی دې موږ ته د خپل ايمان د ساتنې توفيق راکړي

## ۴- د انسان د پيدايښت هدف

زما خوږو ورونو!

الله تعالی دې پر تاسو رحم وکړي، ځانونه پر دې خبره پوه کړئ، چې زموږ د پيدايښت يواځينی هدف د رب العلمين عبادت دی

الله تعالی فرمايي:

﴿ وَ مَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَ الْإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ ﴾ .(الذريت:٥٦).

ژباړه: ما پېريان او انسانان يوازې دخپل عبادت لپاره پيداکړي دي (چې زما احکام ومني، د توحيد اقرار، د اسلامي بيرغ د لوړاوي او زما د دين د

---

(۱) سلسلة الاحاديث الصحيحه للالباني.

برلاسی لپاره هڅې وکړي).

**معاذ بن جبل رضي الله عنه فرمايي:**

«كُنْتُ رِدْفَ رَسُولِ الله صلى الله عليه وسلم عَلَى حِمَارٍ يُقَالُ لَهُ عُفَيْرٌ قَالَ فَقَالَ: يَا مُعَاذُ تَدْرِى مَا حَقُّ اللهِ عَلَى الْعِبَادِ وَمَا حَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللهِ قَالَ: قُلْتُ اللهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. قَالَ: فَإِنَّ حَقَّ اللهِ عَلَى الْعِبَادِ أَنْ يَعْبُدُوا اللهَ وَلاَ يُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا وَحَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللهِ عَزَّ وَجَلَّ أَنْ لاَ يُعَذِّبَ مَنْ لاَ يُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا، قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ أَفَلاَ أُبَشِّرُ النَّاسَ قَالَ: لاَ تُبَشِّرْهُمْ فَيَتَّكِلُوا.

ژباړه: یو ځلې زه له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره شاته په خره سپور وم، چې راته ویې فرمایل: ای معاذه! ایا پوهیږې چې الله تعالی پر بنده ګانو کوم حقونه لري او بنده ګان پر الله تعالی کوم حقونه لري؟ ما عرض وکړ چې الله تعالی او د هغه رسول ښه پوهیږي. رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: الله تعالی پر بنده ګانو دا حق لري، چې یوازې د ده عبادت وکړي او له ده سره کوم شریک ونه ګرځوي. او د بنده ګانو پر الله تعالی دا حق دی، چې چا له ده سره شریک نه وي نیولی، هغه ته عذاب ور نه کړي. معاذ رضي الله عنه فرمایي ما وویل: ای د الله رسوله! که اجازه وي، نو خلکو ته یې زېری ورکړم؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: نه! هسې نه چې خلک پر دې یقین وساتي او کېني (او عمل ونه کړي).

**ګرانه وروروجانه!**

څرګنده شوه، چې انسان یوازې د دې لپاره پیدا شوی دی، چې د الله تعالی عبادت وکړي، د هغه رضا حاصله کړي، د خپل اخروي ژوند د ښه

کولو او د جنت د ترلاسه کولو لپاره هلې ځلې وکړي د دې دا مطلب نه دی، چې انسان دنیا ته راغی، خوراک او څښاک يې وکړ، چکرې يې ووهلې، له ژوند څخه يې خوند واخیسته او د مرګ په راتلو يې معامله پای ته ورسېده نه نه؛ بلکې دې دنیا ته راتګ د دې لپاره دی، چې د الله لارښوونې په بشپړ ډول عملي شي، بیا به يې نتیجه راوځي، د ښو به ښه نتیجه او د بدو به بده، څوک چې د الله او د هغه د رسول پیروي کوي، د هغوی لپاره په بل ژوند کې جنت او د دې نعمتونه، او څوک چې سرغړونه کوي، نو د هغوی لپاره د دوزخ عذاب دی.

الله تعالی فرمايي:

﴿وَ اللّٰهُ يَدْعُوْٓا اِلٰى دَارِ السَّلٰمِ ؕ وَ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ۝ لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوا الْحُسْنٰى وَ زِيَادَةٌ ؕ وَ لَا يَرْهَقُ وُجُوْهَهُمْ قَتَرٌ وَّ لَا ذِلَّةٌ ؕ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ۝ وَ الَّذِيْنَ كَسَبُوا السَّيِّاٰتِ جَزَآءُ سَيِّئَةٍۭ بِمِثْلِهَا ۙ وَ تَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ ؕ مَا لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ عَاصِمٍ ۚ كَاَنَّمَآ اُغْشِيَتْ وُجُوْهُهُمْ قِطَعًا مِّنَ الَّيْلِ مُظْلِمًا ؕ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ۝﴾. (یونس: ۲۶-۲۷).

ژباړه: الله تاسو د امن کورته رابولي او چا ته چې وغواړي، په نېغه لار د تلو توان هم ورکوي، چې نېک عملونه وکړي، نو د هغوی لپاره ښېګڼه ده او زیات (الهي دیدن) دی، د دوی په مخونو به توروالی او رسوايي نه وي، همدا جنتیان دي او تل به په دې کې اوسېږي او چا چې بد عملونه وکړه، بدله يې د بد کار برابره ده، رسوايي به يې په برخه وي، هېڅوک به داسې نه وي، چې دوی دالله له عذابه څخه وژغوري داسې به ښکاري، چې د دوی په مخونو د تورو شپو برخې پرتې دي، همدا خلک دوزخیان دي او تل به په دې کې وي.

# ۵- عبادت څه شی دی ؟

عبادت په حقیقت کې د بنده ګۍ د ټولو هغو مراسمو نوم دی، چې د هغې په واسطه خلک عبادت کوي، لکه دعا، وېره، هیله، روژه، لمونځ، قرباني، نذر منل او داسې نور، چې په مینه او عاجزۍ سره یوائې الله لپاره خاص شي، او دالله د لویوالي پر وړاندې خشوع او خضوع رامنځته شي، الله تعالی د پیغمبرانو په یادونه کې فرمایي:

﴿ اِنَّهُمْ كَانُوْا يُسٰرِعُوْنَ فِي الْخَيْرٰتِ وَ يَدْعُوْنَنَا رَغَبًا وَّ رَهَبًا ۭ وَ كَانُوْا لَنَا خٰشِعِيْنَ۝ ﴾. (الانبیاء:۹۰).

ژباړه: بې شکه دوی په نېکیو کې تېزوالی کاوه او زموږ د رغبت ( د رحمت په هیله او زموږ له عذاب ) څخه په وېره یې رابللو، او همدوی زموږ خشوع کوونکي وو.

الله تعالی دې پر تاسې رحم وکړي، د عبادت لفظ له عبد څخه اخیستل شوی او په عربۍ کې عبد غلام ته وایي. غلام هغه چا ته ویل کېږي چې ( ۲۴ ) ساعته غلام وي، شپه وي او که ورځ، رنځا وي که تیاره، هر وخت چې یې بادار راوغواړي، نو سمدستي حاضرېږي او کوم حکم چې ورته کوي، هغه پر ځای کوي.

زما خوږو ورونو !

دا په ډاګه شوه، چې عابد هغه انسان ته باید وویل شي، چې هره شېبه د الله تعالی احکام په پام کې نیسي او پر هغې عمل کوي، په خوشحالۍ، غم، عبادت، سیاست، کروندې، سوداګرۍ، لنډه دا چې د ژوند هره شېبه یې د الله په عبادت تېرېږي.

الله تعالی فرمایي:

قُلْ إِنَّ صَلَاتِيْ وَ نُسُكِيْ وَ مَحْيَايَ وَ مَمَاتِيْ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ۝ لَا شَرِيْكَ لَهٗ ۚ وَ بِذٰلِكَ اُمِرْتُ وَ اَنَا اَوَّلُ الْمُسْلِمِيْنَ۝ ﴾.(الانعام:۱۶۲-۱۶۳)

ژباړه: ای محمده ! ته ورته ووایه، چې زما لمونځ، قرباني، ژوند او مرګ هر څه د رب العلمین لپاره دي چې له سره شوک ورسره برخه وال نه شته او ماته د دې خبرې حکم شوی دی او زه تر ټولو لومړی مسلمان یم ګرانه وروره !

په دې ډول به ټول ژوند په بشپړ ډول د الله جل جلاله په عبادت تېر شي، بیا ستاسو خوب، پاڅېدل، تلل، خوړل، څښل، سوداګري، کرهنه او ماشومانو او ښځو ته خپل حقونه ورکول، تردې چې له ګناه څخه د خلاصون په خاطر له خپل مېرمنې سره کوروالی هم عبادت دی.

له ابو ذر رضي الله عنه څخه روایت دی چې ځینو صحابه کرامو له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه پوښتنه وکړه :

يَا رَسُولَ اللَّهِ ! أَيَأْتِي أَحَدُنَا شَهْوَتَهُ وَيَكُونُ لَهُ فِيهَا أَجْرٌ قَالَ: أَرَأَيْتُمْ لَوْ وَضَعَهَا فِي حَرَامٍ أَكَانَ عَلَيْهِ فِيهَا وِزْرٌ فَكَذَلِكَ إِذَا وَضَعَهَا فِي الْحَلَالِ كَانَ لَهُ أَجْرٌ.[1]

یارسول الله ! کله چې یو تن له موږ څخه په کوروالي سره خپل شهوت پوره کوي، نو ایا په دې کې ثواب شته ؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل : دا ووایاست چې کله هغه شخص په حرامه طریقه شهوت پوره کړي، نو ایا دا به ګناهکار شي، په همدې طریقه کله چې هغه په حلاله طریقه خپل شهوت پوره کړي، نو دا کار د ده لپاره ثواب لري

(۱) مختصر صحیح المسلم للالباني.

## ۶- غوره عبادت د فریضو پابندي ده

زما خوږو ورونو ! تر ټولو غوره عبادت دا دی، چې یو مسلمان د الله تعالیٰ فرضي حکمونه پر ځای کړي، لکه څرنګه چې به حدیث قدسي کې راغلي دي:

وَمَا تَقَرَّبَ إِلَيَّ عَبْدِي بِشَيْءٍ أَحَبَّ إِلَيَّ مِمَّا افْتَرَضْتُ عَلَيْهِ.[1]

ژباړه: ماته د بنده نږدېوالي تر ټولو غوره طریقه فرایض دي.

په یاد ولرئ! که چېرې فرایض له پامه وغورځول شي، نو بل کوم شی داسې نه شته، چې د الله تعالی مینه پرې لاس ته راشي.

### د اسلام ارکان

په فرایضو کې تر ټولو ضروري ارکان لمونځ، روژه، حج او زکات دي.

د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په روایت شوي حدیث کې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

بُنِيَ الإِسْلاَمُ عَلَى خَمْسٍ شَهَادَةِ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ، وَإِقَامِ الصَّلاَةِ، وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ وَالْحَجِّ، وَصَوْمِ رَمَضَانَ.[2]

ژباړه: د اسلام بنسټ پر پنځو شیانو ولاړ دی:

۱- د دې خبرې ګواهي ورکول، چې له الله پرته بل څوک د عبادت وړ نه شته (همدا ذات حاجت روا، مشکل کشا، مرستندوی، د ژوند او مرګ خاوند، اولاد ورکوونکی، رزق ورکوونکی، د ګټې او زیان مالک دی، د هر څه واک له ده سره دی، نور ټول مخلوقات عاجز دي، له ده سره کوم پیغمبر، ولي، پرېښته یا بزرګ شریک نه شته، الله تعالی د خپل ذات په

(۱) صحیح البخاري.

(۲) البخاري: الایمان، باب دعاءکم ایمانکم، حدیث: ۸.

ځېر په صفاتو کې هم یو دی ، او محمد دالله رسول دی.

۲- د لمانځه اداء کول، ۳- زکات ورکول، ۴- د بیت الله شریف حج کول،

۵- د روژې د میاشتې روژې نیول.

ګرانه وروره !

دا پنځه ارکان د اسلام په مبارک دین کې بنستیز حیثیت لري، لکه څرنګه چې د یو تعمیر د قوي کولو لپاره د تهداب ژوروالی او مظبوطوالی ضروري دی، همدارنګه د ایمان د کلکوالي او پوخوالي لپاره هم پیاوړتیا ضروري ده. لکه څرنګه چې د یو عمارت د سینګار کولو او ډولي کولو لپاره سامان ضروري وي، همدارنګه اسلام هم په نېکو اعمالو ښایسته کېږي، بلکې د ځینو عالمانو په نزد له اعمالو پرته ایمان کومه ګټه نه لري،نو ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم په پورته حدیث کې وفرمایل

اسلام پر پنځو شیانو ولاړ دی

د دې مطلب دادی چې د دې پنځوو شیانو د نشتوالي په صورت کې به دا عمارت له منځه ولاړ شي.

## ۷- د اعمالو د قبلېدو شرطونه

زما درنو ورونو !

موږ چې کله لمونځونه کوو، روژې نیسو، حج کوو او زکات ورکوو یا له دې پرته نور نېک کارونه کوو، نو دا خبره باید موږ ته څرګنده وي، چې د دې اعمالو قبلېدل کومو کړنو پورې نغښتي دي ؟ یا په بل عبارت، هغه کوم شرطونه دي، چې عمل پرې د قبولیت سند ترلاسه کوي او الله تعالی نه له هغې پرته نېک اعمال قبلوي او نه یې ثواب ورکوي، هغه څلور شرطونه دي :

۱- د عقېدې سمول او له شرک څخه ډډه کول

درنو ورونو !

که چېرې د یو نېک عمله مسلمان عقیده صحیح نه وي، نو د هغه ټول عبادتونه بې ځایه دي، ځکه چې په دې اړه الله تعالی د سورت فرقان په (۲۳) ایت کې داسې فرمايي:

﴿وَ قَدِمْنَآ إِلَىٰ مَا عَمِلُوا۟ مِنْ عَمَلٍ فَجَعَلْنَٰهُ هَبَآءً مَّنثُورًا ﴿٢٣﴾﴾.

ژباړه: او موږ به د هغه شویو عملونو ته پام وکړو او د هغه ټول اعمال به د ګرد غبار په څېر والوځوو.

**یو مؤحد مومن او مشرک سره هېڅکله نه برابرېږي:**

خوږو ورونو !

راځئ چې په لاندینو دوه حدیثونو فکر وکړو:

## د توحید برکتونه

ابو هريرة رضي الله عنه فرمايي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

بَيْنَمَا كَلْبٌ يُطِيفُ بِرَكِيَّةٍ قَدْ كَادَ يَقْتُلُهُ الْعَطَشُ إِذْ رَأَتْهُ بَغِيٌّ مِنْ بَغَايَا بَنِي إِسْرَائِيلَ فَنَزَعَتْ مُوقَهَا فَاسْتَقَتْ لَهُ بِهِ فَسَقَتْهُ إِيَّاهُ فَغُفِرَ لَهَا بِهِ.[1]

ژباړه: یو وخت یو سپی له کوهي څخه تاوېده او ډېر تږی شوی و، په دې کې پرې د بني اسرائیلو د یوې بدکارې ښځې سترګې ولګېدې، ښځې په خپله موزه کې له کوهي څخه اوبه راپورته کړې او سپي ته یې ورکړې، الله تعالی د دې عمل په وجه ښښنه ورته وکړه.

---

(۱) صحیح البخاري.

**د شرک بدوالی:**

**عایشه رضي الله عنها فرمايي، چې مارسول الله صلی الله علیه وسلم ته عرض وکړ:**

يَا رَسُولَ اللَّهِ ابْنُ جُدْعَانَ كَانَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ يَصِلُ الرَّحِمَ وَيُطْعِمُ الْمِسْكِينَ فَهَلْ ذَاكَ نَافِعُهُ قَالَ: لاَ يَنْفَعُهُ إِنَّهُ لَمْ يَقُلْ يَوْمًا رَبِّ اغْفِرْ لِي خَطِيئَتِي يَوْمَ الدِّينِ.[1]

ژباړه: ای رسول الله! د جدعان زوی به د جهالت په زمانه کې صله رحمي کوله او مسکینانو ته به يې ډوډۍ ورکوله، ايا دا عملونه هغه ته کومه ګټه رسوي؟ (دقیامت په ورځ به هغه ته ببښنه وشي؟) رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: ده ته به (دا اعمال) هېڅ ګټه ونه رسوي، ځکه چې ده هېڅکله داسې نه دي ویلي، چې ای زما ربه! د قیامت په ورځ راته ګناهونه وبښه.

د پورته دوارو حدیثونو له غور وروسته دې نتیجې ته رسېږو، چې د توحید د عقیدې له برکته نور ګناهونه هم ببښل کېږي، په داسې حال کې چې د توحید له عقیدې پرته نېک اعمال د قیامت په ورځ چاته هېڅ ګټه نه رسوي.

**د توحید د عقیدې غوښتنې:**

**زما خوږو وروڼو!**

د عقیدې د سمولو لومړی شرط دا دی، چې پر الله تعالی بشپړ ایمان وي، په دې اړه دې دا عقیده وي، چې هر ډول عبادتونه، که هغه قولي وي یا فعلي او یا هم بدني، مستحق يې یواځې الله تعالی دی، له ده پرته په ټولو

---

(۱) صحیح المسلم.

کایناتو کې بل څوک د عبادت وړ نه شته، د هر ډول زیان او ګټې خاوند یوائې الله تعالی دی، د رزق ورکولو، اولاد ورکولو، باران ورولو، په ناروغۍ اخته کولو، شفاء ورکولو او داسې نورو اختیار یوائې له رب العلمین سره دی اوبس.

همدا رب العالمین د ټولو ستونزو لرې کوونکی، د حاجت پوره کوونکی، د خزانو ورکوونکی، غوث الاعظم، مرستندوی، پر ښکاره او پټو شیانو عالم، پر ټولو چارو مدبر او په ټولو کایناتو دده حکم چلیږي. ټول ځواک، شفاعت، عزت او د دنیا او اخرت خزانې هم له ده سره دي، همدا ذات یوائې په غیبو پوهیږي او په هر شي قادر دی.

﴿ إِنَّمَآ أَمۡرُهُۥٓ إِذَآ أَرَادَ شَيۡـًٔا أَن يَقُولَ لَهُۥ كُن فَيَكُونُ ۝ ﴾. (یس:۸۲).

ژباړه: کله چې الله تعالی د کوم شي اراده وکړي، نو ورته حکم وکړي، چې شه نو هغه کار وشي.

ګرانه وروره ! باید په یاد ولرې، چې کله د یو چا ایمان او توحید یوائې ژبې پورې تړلی وي او په عملي ژوند کې ځای نه ورکوي، نو دا هم دده لپاره کومه ګټه نه لري.

**اخلاص کول او له ریاء څخه ډډه:**

د عملونو د قبلېدو دویم شرط اخلاص دی. اخلاص دې ته وایي، چې موږ هر کار کوو، یوائې د الله تعالی رضا مو مقصد وي، نه د بل چا خوشحالول، او نه مو په دې کارونو کې دا نیت وي، چې که چېرې زه دا کار وکړم، نو خلک به راته عالم او پرهېزګاره ووایي.

خلک به مې ډېر غوره قاري او مېړنی وبولي، باید هېڅکله په خپلو عملونو کې له خلکو هیله او تمه ونه لرو، هر عمل باید یوائې د الله تعالی لپاره وکړو.

**الله تعالی فرمايي:**

﴿هُوَ الْحَيُّ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ فَادْعُوْهُ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ؕ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ۝۶۵﴾. (المؤمن:٦٥).

ژباړه: هغه ذات چې ژوندی دی او له هغه پرته بل څوک د عبادت وړ نه شته، نو پس تاسو یوائې همدا ذات رابلئ، ټول صفتونه د هغه رب لپاره دي، چې د ټولو کايناتو پالونکی دی.

**د شهرت د ترلاسه کولو نتیجه:**

یو ځل یو شخص رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ورغی او ویې ترې پوښتل: ای د الله رسوله! که چیرې یو شخص د ثواب او شهرت لپاره جهاد وکړي، نو د هغه په اړه څه حکم دی؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: لَاشَيْءَ لَهُ په دې کې د هغه لپاره کوم اجر نه شته دې شخص دا پوښتنه درې ځلې تکرار کړه او رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته درې ځلې همدا ځواب ورکړ، بیا یې ورته وفرمایل:

إِنَّ اللهَ لَا يَقْبَلُ مِنَ الْعَمَلِ إِلَّا مَا كَانَ لَهُ خَالِصًا، وَابْتُغِيَ بِهِ وَجْهُهُ.[1]

ژباړه: الله تعالی یوائې هغه عملونه قبلوي، چې له اخلاص سره د ده د رضا لپاره وشي.

همدارنګه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

نَادَى مُنَادٍ : مَنْ كَانَ أَشْرَكَ فِي عَمَلٍ عَمِلَهُ لِلّٰهِ، فَلْيَطْلُبْ ثَوَابَهُ مِنْ عِنْدِ غَيْرِ اللهِ، فَإِنَّ اللهَ أَغْنَى الشُّرَكَاءِ عَنِ الشِّرْكِ.[2]

---

(١) سنن النسايي.

(٢) جامع الترمذي: ٢٥٢١.

ژباړه: د قیامت په ورځ به یو اعلان کوونکی اعلان وکړي، چې چا د الله تعالی د رضا پر ځای د بل چا لپاره عمل کړی وي، نو هغوی ته دې ورشي او د خپل ثواب غوښتنه دې ترې وکړي، پس الله تعالی د شریکانو له شرک څخه بې پروا دی.

## د رسول الله صلی الله علیه وسلم د سنتو پیروي:

د نیک عمل د قبلېدو درېیم شرط د رسول الله صلی الله علیه وسلم پیروي ده، مطلب دا چې هر یو عمل چې وي، باید د رسول الله صلی الله علیه وسلم په طریقه ترسره شي، بیا به یې الله تعالی قبلوي، الله تعالی فرمایي:

﴿ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَلَا تُبْطِلُوا أَعْمَالَكُمْ ﴾ .

(محمد:۳۳).

ژباړه: ای مؤمنانو! د الله او د هغه د رسول پیروي وکړئ او خپل عملونه مه بربادوئ.

ګویا د الله تعالی او د هغه د رسول په سرغړونه کې یوازې دا زیان نه دی نغښتی، چې عمل به قبول نه شي، بلکې د نورو اعمالو وېره هم ورسره ده.

ګرانه وروره!

د رسول الله صلی الله علیه وسلم پیروي د هدایت یوازینی معیار دی، الله تعالی فرمایي:

﴿ وَإِنْ تُطِيعُوهُ تَهْتَدُوا ﴾ . (النور:۵٤).

ژباړه: که چېرې تاسو د رسول الله صلی الله علیه وسلم پیروي وکړئ، نو هدایت به ومومئ.

همدارنګه په بل ځای کې فرمایي:

﴿ وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ

شَدِيْدُ الْعِقَابِ﴾. (الحشر:۷).

ژباړه: تاسو ته چې رسول کوم حکمونه درکوي، هغه واخلئ، او له کومو شیانو څخه مو چې منعه کوي، هغه پرېږدئ او له الله تعالی وویرېږئ، بې شکه الله تعالی سخت عذاب ورکوونکی دی.

**د الله تعالی مینه څنګه ترلاسه کېږي ؟**

د رسول الله په پیروی کې د رب العالمین مینه او د هغه پیروي پرته ده.

**د رسول الله صلی الله علیه وسلم د پیروی مفهوم:**

**ګرانه وروره!**

دیو مومن اعمال نه، بلکې د هغه هیلې هم باید د رسول الله صلی الله علیه وسلم د لارښوونو سره سمې وي او په دې حالت کې هم له هغه څخه سرغړونه ونه شي، بلکې پرېکړې يې پرته له کوم فکر څخه ومنل شي

الله فرمايي:

﴿وَ مَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَّ لَا مُؤْمِنَةٍ اِذَا قَضَى اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهٗۤ اَمْرًا اَنْ يَّكُوْنَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ اَمْرِهِمْ ؕ وَ مَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًا مُّبِيْنًا﴾.

(الاحزاب:۳٦).

ژباړه: او د کوم مسلمان سړي او ښځې لپاره له الله او د هغه د رسول له حکم وروسته هيڅ د خپل کوم کار واک نه پاتې کېږي او چا چې د الله تعالی او د هغه د رسول څخه سرغړونه وکړه، نو هغه په ښکاره ګمراهۍ کې ولوېد.

همدارنګه فرمايي:

﴿قُلْ اِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّوْنَ اللّٰهَ فَاتَّبِعُوْنِيْ يُحْبِبْكُمُ اللّٰهُ وَ يَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوْبَكُمْ ؕ وَ اللّٰهُ

غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ (ال عمران:۳۱).

ژباړه: ای محمد ه! ته ورته ووایه، چې څوک له الله سره مینه کوي، نو هغه دې زما پیروي وکړي، له دې کار سره به الله هم له هغه سره مینه وکړي او ګناهونه به یې ورته وبښي، بې شکه الله بښونکی او مهربان دی.

**د کلمې طیبې مفهوم:**

**ګرانه وروره!**

د کلمې طیبې (لا اله الا الله محمد رسول الله) مفهوم هم دا دی، چې د عبادت ور الله دی او زمونږ لپاره د عبادت طریقه یوازې د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم نمونه ده، چې امام اعظم، قاید اعظم او د دواړو جهانو لاربښود دی.

**زما ټول امتیان به جنت ته ځي، خو!**

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

كُلُّ أُمَّتِي يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ إِلاَّ مَنْ أَبَى قَالُوا : يَا رَسُولَ اللهِ، وَمَنْ يَأْبَى قَالَ مَنْ أَطَاعَنِي دَخَلَ الْجَنَّةَ، وَمَنْ عَصَانِي فَقَدْ أَبَى.[1]

زما ټول امتیان به جنت ته داخلیږي، پرته له هغه کسانو چې انکار یې وکړ، یو صحابي وپوښتل: ای رسول الله (جنت له تلو به) انکار کوي؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته په ځواب کې وفرمایل: چا چې زما پیروي وکړه، هغه به جنت ته ننوځي او چا چې زما له پیروۍ سرغړونه وکړه، نو هغه (جنت ته له تلو) انکار وکړ.

**سنت څه شی دی؟**

زما خوږو ورونو! د رسول الله صلی الله علیه وسلم وینا او عمل د سنت په

(۱) صحیح البخاري: الاعتصام، باب الاقتداء بسنن رسول الله، حدیث: ۷٦۸۰.

نامه یادېږي او کوم مسلمانان چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د صحیحو او ثابتو شویو احادیثو سره سم ژوند تېروي، نو همدا خلک اهل السنة والجماعت دي او همدا خلک د الله منونکي دي، ځکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

مَنْ أَطَاعَنِي فَقَدْ أَطَاعَ اللهَ.[1]

چاچې زما پیروي وکړه، نو په حقیقت کې هغه د رب العالمین پیروي وکړه.

**دین د کومې ذاتي غوښتنې نوم نه دی:**

او څوک چې د عبادتونو په لړه کې د خپل خواهش پیروي کوي او د رسول الله صلی الله علیه وسلم وېناوې په پام کې نه نیسي او ځینې هغه کارونه هم ثواب بولي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم نه وي ترسره کړي. زما ورونو! دا شخص د دې وړه نه دی، چې الله ورته ثواب ورکړي، د دې برعکس دې شخص ته به عذاب ورکوي، ځکه چې کوم کار د رسول الله صلی الله علیه وسلم په سپېڅلي ژوند کې نه وي شوی او دین ته رانوتی وي، په داسې حال کې چې حقیقتاً یي له دین سره کوم تړاو شتون نه لري، نو داسې کارونه په فقهي اصطلاح بدعت بلل کېږي.

**په اسلام کې د نېک بدعت شتون ناممکن دی:**

جابر رضي الله عنه فرمايي: رسول الله صلی الله علیه وسلم به په خطبه کې دا الفاظ ویل:

فَإِنَّ خَيْرَ الْحَدِيثِ كِتَابُ اللهِ وَخَيْرُ الْهُدَى هُدَى مُحَمَّدٍ وَشَرُّ الْأُمُورِ

---

(۱) صحیح البخاري: حدیث: ۲۹۵۷.

مُحْدَثَاتُهَا وكُلُّ بِدْعَةٍ ضَلاَلَةٌ.(۱)

ژباړه: بې شکه غوره خبره د الله او غوره لار د رسول الله صلی الله علیه وسلم ده، او بدترین کار (په دین کې) د نویو شیانو پیدا کول دي او دا کارونه بدعات (ګمراهي) دي.

کوم عمل چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په طریقه نه وي، مردود دی همدارنګه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

مَنْ أَحْدَثَ فِي أَمْرِنَا هَذَا مَا لَيْسَ فِيهِ فَهُوَ رَدٌّ.(۲)

ژباړه: چا چې زموږ په دین کې (له خپل ځان څخه) کومه نوې خبره پیدا کړه، هغه خبره (یا کار) مردوده ده.

ګرانه وروه!

په دې حدیث کې یو ډېر ښکلی قانون بیان شوی دی، له بده مرغه چې مسلمانانو دې حدیث او د دې اصولو ته کوم ارزښت ورنه کړ، چې له همدې امله بدعات په خلکو کې عام شو، بلکې همدا بدعات د اصلي دین په توګه وپېژندل شو خلک هم پرې په ډېره ښه طریقه عمل کوي.

**د بدعت د خپرېدو سببونه:**

ګرانه وروره!

د بدعت د خپرېدو یو سبب هم له دین څخه ناخبري بلل شوې، دویم سبب دا دی، چې یو څوک له پورته قانون څخه پوره پوه شوی نه وي، په داسې حال کې چې دا قانون په څرګنده ډول ښکاره دی. له پورتني حدیث څخه دا خبره معلومېږي، چې یو څوک یو کار د ثواب سبب وبولي، په داسې حال

(۱) صحیح مسلم: الجمعة، باب تخفیف الصلاة والخطبة،ح:۸٦٧.
(۲) صحیح البخاري: الصلح، باب اذا اصطلحوا علی صلح جور فالصلح مردود،ح:۲٦۹۸.

کې چې د هغې کار ثبوت په کتاب او سنت کې شتون ونه لري، همدا بدعت هر هغه څه دي، چې د شریعت په احکامو، د صحابه کرامو په کړنو او د تابعینو په کړنو برابر نه دي، بل دا چې د خیر القرون له تعامل څخه بې برخې وي، پس همدا کارونه بدعات دي او الله تعالی یې هېڅکله نه قبلوي.

**ایا دا هم بدعت دی ؟:**

البته هغه کارونه چې ډېر ضروري وي او په دین کې نه شمېرل کېږي. بدعت نه بلل کېږي. همدارنګه ټول مباحات په بدعت کې نه داخلېږي، چې په ژوند کې ګټور وي، اګر چې له نبوي ژوند څخه وروسته ایجاد شوي وي، خو دا ثواب الله تعالی ته د نږدېوالي او د دین برخه نه ګڼل کېږي، د مثال په توګه : د موټر، موټرسایکل سورلی، د اذان یا خطبې لپاره د لاوډسپیکر کارول، له برق څخه د رڼا کار اخیستل، عینکې اچول، ساعت په لاس کول او داسې نور، بدعت نه بلل کېږي.

ګرانه وروره !

بدعت یوازې له هغو کارونو څخه عبارت دی، چې نوی هم وي او د ثواب تمه ترې هم کېږي، الله تعالی دې ټولو مسلمانانو ته په سمه معنا د رسول الله صلی الله علیه وسلم پیروي ور په برخه کړي.

۴- ګرانه وروره !

د عمل د قبلېدو څلورم شرط حلال رزق دی. له ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :

إِنَّ اللهَ طَيِّبٌ لَا يَقْبَلُ إِلَّا طَيِّبًا، وَإِنَّ اللهَ أَمَرَ الْمُؤْمِنِينَ بِمَا أَمَرَ بِهِ الْمُرْسَلِينَ، فَقَالَ: ﴿ يَا أَيُّهَا الرُّسُلُ كُلُوا مِنَ الطَّيِّبَاتِ وَاعْمَلُوا صَالِحًا ﴾.

( المومنون : ۵۱ ).

ثُمَّ ذَكَرَ الرَّجُلَ يُطِيلُ السَّفَرَ أَشْعَثَ أَغْبَرَ يَمُدُّ يَدَيْهِ إِلَى السَّمَاءِ يَا رَبِّ يَا رَبِّ وَمَطْعَمُهُ حَرَامٌ وَمَشْرَبُهُ حَرَامٌ وَمَلْبَسُهُ حَرَامٌ وَغُذِيَ بِالْحَرَامِ فَأَنَّى يُسْتَجَابُ لِذَلِكَ.(۱)

ژباړه: بې شکه الله پاک دی او پاک شیان قبلوي، او په تحقیق سره الله تعالی مومنانو ته هغه حکم کړی، کوم چې پیغمبرانو ته شوی، نو ځکه الله تعالی فرمایي: چې پاک شیان (حلال) خورئ او نېک عمل کوئ، له دې وروسته رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغه شخص یادونه وکړه، چې اوږد سفر وکړي، ویښتان یې هم په خاورو خړ وي، اسمان ته ګوري او لاسونه یې پورته کړي وي او وایي: ای ربه! په داسې حال کې چې د ده خواړه حرام او لباس هم حرام وي، نو د ده دعا به څنګه قبوله شي؟

**د حرام خور عبادت د قبلېدو وړ نه دی:**

ګرانه وروره!

په دې مبارک حدیث کې د عمل قبلېدل د حلال رزق پورې تړلي ښودل شوي، چې الله تعالی خپله هم پاک دی او پاک شیان خوښوي، په عاجز حال کې چې کله مسافر دعا وکړي، مګر د هغه خواړه او لباس له حرامو څخه وي، نو دعا به یې څنګه قبوله شي؟ ګویا د نېکو اعمالو د قبلېدو لپاره حلال رزق بنستیز شرط دی.

له عبدالله بن عمر رضي الله عنهما څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

لَا تُقْبَلُ صَلَاةٌ بِغَيْرِ طُهُورٍ وَلَا صَدَقَةٌ مِنْ غُلُولٍ.(۲)

---

(۱) صحیح مسلم: الزکاة، حدیث: ۱۰۱۵.

(۲) صحیح مسلم: الطهارة، باب وجوب الطهارة للصلاة ص، ح: ۲۲۴.

ژباړه: الله تعالی له اوداسه پرته لمونځ نه قبلوي او له خيانت شوي مال څخه صدقه نه قبلوي.

کريمه ربه ! موږ ته د حلالو د ګټلو او خوړلو توفيق راکړې او له حرامو مو وژغورې.

## ۸ - د پنځه وخته لمانځه حفاظت

زما خوږو ورونو !

پنځه وخته لمونځ په خپل ټاکلي وخت اداء کوئ، دا تر ټولو غوره او رب العلمين ته خوښ عمل دی.

عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي، چې ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه پوښتنه وکړه :

أَيُّ الأَعْمَالِ أَفْضَلُ قَالَ الصَّلاَةُ لِوَقْتِهَا وَبِرُّ الْوَالِدَيْنِ ثُمَّ الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللهِ.(۱)

کوم عمل الله تعالی ته غوره دی؟ رسول الله صلی الله عليه وسلم راته وفرمايل: لمونځ په خپل وخت اداء کول، ما وويل : بيا کوم عمل. رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل : له مور او پلار سره نيکي کول، ما وويل : بيا کوم عمل ؟ رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل : د الله په لاره کې جهاد کول.

**د لمانځه حکمت :**

زما ګرانه وروره!

لمونځ د رب العلمين د بې شمېره نعمتونو د شکر ايستلو، عاجزۍ او د خپل قدرمن تندي په ځمکه ايښودلو نوم دی، ګويا بنده رب ته د دې اقرار

(۱) صحيح البخاري: المواقيت، حديث : ۵۲۷ .

کوي، چې د بدني نعمتونو او لوړینو پرته بې شمېره احسانونه، هدایت یوائې ستا له لوري دی او بیا بنده خپل رب ته د دعا لپاره لاسونه لپه کړي. زما ګرانه ورورہ! په لمانځه د مسلمانانو زړه او فکر بدلېږي او د نېک سیرت خاوند ګرځي، په ځانګړي ډول د جمعې په لمانځه د مسلمانانو تر منځ اتفاق رامنځته کېږي، ژوند مهرباني پیدا کوي او د امیر د اطاعت جذبه په خوځېدو پیل کوي. د پنځه وخته لمانځه په پابندۍ سره ژوند د ترقۍ پر مخ روانېږي او روح په کې تازه وي.

**د لمانځه ارزښت:**

د لمانځه ارزښت یوائې له دې څخه هم څرګندېږي، چې که چېرې د صلاة لفظ د هغه له مشتقاتو پرته بېل کړای شي، نو د قرانکريم په بېلابېلو سورتونو کې دا لفظ نږدې (۶۷) ځلې تکرار شوی دی او په هرځای کې د سیاق او سباق عبارتونه جلا دي.

**د جمعې د لمانځه فضیلت او په پرېښودو یې زورونه:**

**ګرانه وروره!**

مسلمانانو ته فولادي قوت، تربیه په پنځه وخته اجتماعي لمونځ په لاس ورځي، نو ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

صَلاَةُ الْجَمَاعَةِ تَفْضُلُ صَلاَةَ الْفَذِّ بِسَبْعٍ وَعِشْرِينَ دَرَجَةً.(۱)

ژباړه: د جمعې لمونځ د یوائې لمانځه څخه وویشت درجې زیات ثواب لري.

همدارنګه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ آمُرَ بِحَطَبٍ فَيُحْطَبَ ثُمَّ آمُرَ

(۱) صحيح البخاري: الاذان، بابا فضل صلاة الجماعة ح:٦٤٥.

بِالصَّلاَةِ فَيُؤَذَّنَ لَهَا ثُمَّ آمُرَ رَجُلاً فَيَؤُمَّ النَّاسَ ثُمَّ أُخَالِفَ إِلَى رِجَالٍ فَأُحَرِّقَ عَلَيْهِمْ بُيُوتَهُمْ.(۱)

ژباړه: په هغه ذات قسم، چې زما ساه د هغه په لاس کې ده، بې شکه زما اراده ده، چې زه د لرګیو د راټولولو حکم وکړم، بیا د لمانځه لپاره د اذان حکم وکړم، بیا یو تن ته حکم وکړم، چې خلکو ته لمونځ وکړي، او زه خپله هغو خلکو ته ورشم چې لمانځه ته نه وي راغلي او دهغوی کورونه وسوځوم.

ګرانه وروره!

د جمعې په لمانځه د دې لپاره زور ورکړل شوی، چې مسلمان د دې ضروري روزنې څخه بې برخې نه شي، ځکه چې دا د انساني نسل د لاربښوونې او د باطلو ځواکونو د له منځه وړلو دنده لري.

**د لمانځه ادا ء کول او زموږ د دین مشران:**

ګرانه وروره!

زموږ د دین مشرانو خو به د جنګ په ډګر کې هم په جمعه او صف تړلو سره رب العالمین ته خپل سرونه ټيټول، خو افسوس! موږ د خپلو مشرانو په پل قدم کېښنبود، مال او شتمنۍ راڅخه دین هېر کړ، لمونځ، روژې ته مو الله په امانې وویله، اسلامي روایتونه مو پرېښودل، ټولنیز نظام مو ګډوډ شو او زموږ صفونه مات شول.

**اخر ترڅو؟:**

به د غفلت او بې پرواهۍ له خوب څخه خوند اخلو؟ دښمن درته په پوزه کې دم اچولی دی، هغه غواړي چې له تا غلام جوړ کړي په دې فکر دی،

---

(۱) صحیح البخاري: الاذان، باب فضل صلاة الجماعة ح:٦٤٤.

چې په څه ډول ستا ځمکه غصب کې، ستا ځومره وروڼه هره ورځ شهادت ته رسیږي، ایا قومونه په دې ډول ژوندي پاتې کېدای شي ؟

دعاء:

ګرانه وروره !

راځئ د الله په دربار کې په عاجزۍ دعا وکړو:

﴿ رَبِّ اجْعَلْنِيْ مُقِيْمَ الصَّلٰوةِ وَ مِنْ ذُرِّيَّتِيْ ۖ رَبَّنَا وَ تَقَبَّلْ دُعَآءِ ۝ رَبَّنَا اغْفِرْ لِيْ وَ لِوَالِدَيَّ وَ لِلْمُؤْمِنِيْنَ يَوْمَ يَقُوْمُ الْحِسَابُ ۝ ﴾. ( ابراهيم : ۴۱ ).

ژباړه: ای ربه زما ! ما او زما اولاد د لمانځه پابند وګرځوه، ای ربه! ته زما دعا قبوله کړه، ای ربه ! زما مور، پلار او نورو مومنانو ته ببښنه وکړه، په کومه ورځ چې حساب کېږي.

## ۹ - پاکوالی د اسلام ضروري حکم ظاهري پاکوالی او باطني پاکوالی

زما زلمیه وروره !

پاکوالی د اسلام ضروري حکم نه، بلکې یوه مهمه برخه ده. د بنده ګی اداب هم دا غوښتنه کوي، چې بنده دې د خالق په دربار کې ولاړ وي، په داسې حال کې چې هم یې روح پاک وي او هم یې بدن. د اسلام په وړاندې باطني پاکوالی دا دی، چې انسان له شرک، کفر، حسد، حرص، کینې، ویاړ او کبر څخه پاک وي او ظاهري پاکوالی په دې معنا، چې مسلمان دې د تشو او ډکو بولو او چټلی څخه پاک وي.

الله تعالی فرمايي:

﴿ إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ التَّوَّابِيْنَ وَ يُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِيْنَ ۝ ﴾. (البقره:۲۲۲).

ژباړه: بېشکه الله تعالی توبه کوونکي او پاک خلک خوښوي.

**د اوداسه طبي ګټې:**

**ګرانه وروره!**

اودس نه یواځې دا چې ظاهري پاکوالی بلل کېږي، بلکې یو ځانګړی روحاني کیفیت لري او له طبي نظره ډېرې ګټې لري. د سترګو له وینځلو سره د سترګو رڼا زیاتېږي، د غاښونو په وینځلو د معدې ټې شمېره ناروغۍ له منځه ځي، د سر په مسحه کولو د وینې دوران برابرېږي او د لوړ فشار یو علاج هم دی. له اوداسه وروسته بدن پیاوړی ښکاري او پایله یې د دې په ډول هم راښکاره کېږي.

**د اوداسه فضیلت:**

له ابوهریرة رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

إِنَّ أُمَّتِي يُدْعَوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ غُرًّا مُحَجَّلِينَ مِنْ آثَارِ الْوُضُوءِ فَمَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمْ أَنْ يُطِيلَ غُرَّتَهُ فَلْيَفْعَلْ.[1]

ژباړه: زما امتیان به په داسې حال کې راوبلل شي، چې د اوداسه له امله به د هغوی مخونه او لاسونه رڼا کوي، که په تاسو کې څوک د دې رڼا د زیاتوالي توان لري، نو هغه دې ضرور داسې وکړي.

یعنې د اوداسه له اندامونو زیات دې (لاسونه تر اوږو پورې او پښې تر پونډو پورې) ووینځي، په رڼا کې یې زیاتوالی راشي.

همدارنګه رسول الله صلی الله علیه وسلم د اوداسه د فضیلت په اړه فرمایي:

---

(۱) صحیح البخاري: کتاب الوضوء، حدیث: ۱۳۶.

مَنْ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الْوُضُوءَ خَرَجَتْ خَطَايَاهُ مِنْ جَسَدِهِ حَتَّى تَخْرُجَ مِنْ تَحْتِ أَظْفَارِهِ.[1]

ژباړه: چاچې په ښه ډول اودس وکړ ( زما په طریقه )، نو د هغه له بدن څخه به ګناه وځي، تر دې چې د هغه د نوکانو لاندې هم.

**له اوداسه وروسته مسنونه دعاء:**

**زما ګرانه وروره!**

د لمانځه لپاره اودس په ښه ډول وکړه، هر اندام درې ځلې ووینځه او وروسته بیا دا دعا ووایه:

أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ.[2]

ژباړه: زه د دې ګواهي ورکوم چې له الله تعالی پرته بل څوک د عبادت وړ نه شته، هغه یو دی، کوم شریک نه لري، او زه ګواهي ورکوم چې محمد د هغه بنده او رسول دی.

له دې عمل سره رسول الله صلی الله علیه وسلم ستا لپاره دا زیری لري:

إِلاَّ فُتِحَتْ لَهُ أَبْوَابُ الْجَنَّةِ الثَّمَانِيَةُ يَدْخُلُ مِنْ أَيِّهَا شَاءَ.[3]

ژباړه: د ده لپاره به د جنت اته دروازې خلاصې شي، په کومه دروازه چې غواړي، داخل دې شي.

(۱) صحیح مسلم: حدیث: ۲۴۵ .
(۲) صحیح مسلم: الطهارت، حدیث : ۲۳۴ .
(۳) صحیح مسلم: باب الذکر.

## تل په اوداسه کې اوسئ:

پرته له دې د دې عادت جوړ کړئ، چې تل په اوداسه کې یاست، ځکه دا ستاسو لپاره د نېکمرغۍ لامل ګرځي. کله چې تاسو په دې حالت کې ذکر، درود شریف او د قران کریم تلاوت کوئ، په موټر کې چې یاست او الله تعالی یادوئ، نو ستاسو عملنامه به څومره درنه وي، الله اکبر، لږ دې حدیث ته پام وکړئ:

له ابوهریرة رضي الله عنه څخه روایت دی، چې یوه ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم بلال رضي الله عنه د سهار د لمانځه پر مهال راوغوښت او ترې یې وپوښتل:

يَا بِلاَلُ حَدِّثْنِي بِأَرْجَى عَمَلٍ عَمِلْتَهُ فِي الإِسْلاَمِ فَإِنِّي سَمِعْتُ دَفَّ نَعْلَيْكَ بَيْنَ يَدَيَّ فِي الْجَنَّةِ قَالَ مَا عَمِلْتُ عَمَلاً أَرْجَى عِنْدِي أَنِّي لَمْ أَتَطَهَّرْ طُهُورًا فِي سَاعَةِ لَيْلٍ، أَوْ نَهَارٍ إِلاَّ صَلَّيْتُ بِذَلِكَ الطُّهُورِ مَا كُتِبَ لِي أَنْ أُصَلِّيَ.(۱)

ژباړه: ای بلاله! ماته خپل هغه عمل دې وښایه، چې ته پرې په اسلام کې ډېره هیله لرې؟ ځکه چې ماله ځانه وړاندې ستا د پښو اواز په جنت کې واورېده، بلال ورته وویل: ما له دې عمل څخه پرته بل د هیلې عمل نه دی ترسره کړی، چې کومه شیبه مې د شپې او ورځې هم اودس (یا غسل) کړی وي، نو له هغې سره مې دومره لمونځ کړی، چې څومره مې په تقدیر کې و. په ځینو روایتونو کې راغلي، چې دوه رکعته لمونځ یې کړی.

---

(۱) صحیح البخاري: التهجد، حدیث: ۱۱۴۹.

# ۱۰ - په لمانځه کې سستي د منافقانو لاره ده

**زما ګرانه وروره!**

دا سمه نه ده، چې يو مسلمان دې د جمعې په لمانځه کې ځنډ کوي، له دې کار سره سستيا رامنځته کېږي او بيا انسان دې ته اړ شي، چې د ا خپل عادت وګرځوي.

په حقيقت کې دا يو خطرناک عمل دی، په لمانځه کې سستي، ناوخته لمونځ کول، بې ضرورته دوه لمونځونه يوځای کول يا تل په لمانځه کې يو دوه رکعته ضايع کول ډېره سخته ګناه ده، دا ټول په لمانځه کې د بې پرواهۍ صورتونه دي، چې ځان ساتل ترې ډېر ضروري دي.

الله تعالی فرمايي:

﴿ فَوَيْلٌ لِّلْمُصَلِّينَ ۝ الَّذِينَ هُمْ عَن صَلَاتِهِمْ سَاهُونَ ۝ الَّذِينَ هُمْ يُرَاءُونَ ۝ وَيَمْنَعُونَ الْمَاعُونَ ۝ ﴾. (الماعون: ٤-٧).

ژباړه: د هغه لمونځ کوونکوليپاره افسوس او ويل (د دوزخ ژوره کنده) دی، چې له خپلو لمونځونو بې پروا دي، چې رياء کار هم وي او د استعمال شيان له خلکو ايساروي.

**ناپوه څوک دی؟**

﴿ فَخَلَفَ مِن بَعْدِهِمْ خَلْفٌ أَضَاعُوا الصَّلَاةَ وَاتَّبَعُوا الشَّهَوَاتِ فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا ۝ ﴾. (مريم: ٥٩).

ژباړه: له دوی څخه وروسته داسې خلک پيدا شو، چې لمونځونه يې ضايع کړه او د خپلو نفسونو پيروي يې وکړه، ډېر ژر به دوی له خپل عاقبت سره يو ځای شي.

**بيا فرمايي:**

﴿ إِلَّا مَنْ تَابَ وَ ءَامَنَ وَ عَمِلَ صَالِحًا فَأُولَٰٓئِكَ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ وَ لَا يُظْلَمُونَ شَيْـًٔا ۝ ﴾.(مريم:٦٠).

**ژباړه:** مگر هغه کسان چې ايمان يې راوړ او نېک عملونه يې وکړه، داسې خلک به جنت ته ننوځي او د ذره هومره حق به يې ضايع نه شي.

**زما گرانه وروره!**

په ياد لره! له جمعې لمانځه ځخه ډډه کول يواځې د منافقانو کار دی او څوک چې له جمعې لمانځه ځخه لرې گرځي، د هغې وزې يا گډ په څېر دی، چې له رمې بېله شوې وي او بيا د لېوانو ښکار وگرځي. شيطان داسې خلک هم په خپلو وسوسو کې گېروي او برلاسی کېږي پرې.

ابودرداء رضي الله عنه فرمايي، چې ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم ځخه واورېدل:

«مَا مِنْ ثَلاَثَةٍ فِي قَرْيَةٍ وَلاَ بَدْوٍ لاَ تُقَامُ فِيهِمُ الصَّلاَةُ إِلاَّ قَدِ اسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ الشَّيْطَانُ فَعَلَيْكَ بِالْجَمَاعَةِ فَإِنَّمَا يَأْكُلُ الذِّئْبُ الْقَاصِيَةَ».( سنن ابي داود، الصلاة، حديث : ۵۴۸ ).

**ژباړه:** په کوم کلي يا ځنگل کې چې درې تنه وي او د جمعې لمانځه لحاظ نه ساتي، نو پر دوی شيطان غالبه کېږي، نو پس تاسو د جمعې لمونځ پر ځان لازم وگرځوئ، بې شکه لېوه هغه وزه خوري، چې له رمې لرې گرځي.

**د الله اکبر عملي انځور:**

**گرانه وروره!**

تا ته پکار دي، چې کله مؤذن اذان وکړي، نو ټول مصروفيات پرېږدې او د جمعې لمانځه د اداء کولو لپاره د مسجد په لور روان شې، خپله به

رسول الله صلی الله علیه وسلم هم دا کار کاوه، له دې امله عایشه رضي الله عنها فرمايي:

كَانَ يَكُونُ فِي مِهْنَةِ أَهْلِهِ تَعْنِي خِدْمَةَ أَهْلِهِ فَإِذَا حَضَرَتِ الصَّلاَةُ خَرَجَ إِلَى الصَّلاَةِ.(۱)

ژباړه: رسول الله صلی الله علیه وسلم داسې شخص و، چې (سره له نبوته يې) د کور کارونه هم کول او کله چې به د لمانځه وخت شو، نو د لمانځه لپاره به له کوره وواته.

خپل پنځه وخته لمونځ ته پاملرنه وکړه، ځومره سهار رڼا کوونکي ماښام له راتلو مخکې وفات کېږي هره ورځ په توبه او استغفار سره پيلوه، چې له دې سره به دې پروني ګناهونه وبښل شي.

## ۱۱- له اور او منافقت څخه خلاصون

زما ګرانه وروره!

تل په دې هڅه کې اوسه، چې لومړی تکبير درڅخه لاړ نه شي، د دې کار ډېر اهتمام کوه.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

مَنْ صَلَّى لِلَّهِ أَرْبَعِينَ يَوْمًا فِي جَمَاعَةٍ يُدْرِكُ التَّكْبِيرَةَ الأُولَى كُتِبَ لَهُ بَرَاءَتَانِ: بَرَاءَةٌ مِنَ النَّارِ، وَبَرَاءَةٌ مِنَ النِّفَاقِ.(۲)

ژباړه: چاچې څلوېښت ورځې په جمعه لمونځ وکړ او تکبير اولی يې ونيوه، الله تعالی به له دوه شيانو خلاصون ور په برخه کړي يو له دوزخ او بل له منافقت څخه.

(۱) صحيح البخاري: الاذان، حديث: ٦٧٦.

(۲) سنن ابي داود: ٦٦۴.

## په لومړي صف کې د رحمت نازلېدل او د پرښتو دعاګانې:

ګرانه وروره!

پرښتې د لومړي صف خاوندانو لپاره د رحمت دعاګانې کوي او الله تعالی پرې هم ښه رحمت نازلوي، د دې لپاره باید د فضیلت په لاسته راوړنه کې هم سستي ونه شي. براء بن عازب رضي الله عنه وايي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

إِنَّ اللهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى الصُّفُوفِ الْأُوَلِ.[1]

ژباړه: بې شکه الله او پرښتې په لومړي صفونو رحمت نازلوي.

همدارنګه باید ستاسو حالت د لمانځه پر مهال داسې وي، چې د الله تعالی وېره مو په زړه ننوتې وي، سترګې مو ټیټې وي او نرم ولاړ یاست.

الله تعالی فرمايي:

﴿ قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ ۝ الَّذِينَ هُمْ فِي صَلَاتِهِمْ خَاشِعُونَ ۝ ﴾. (المؤمنون: ۱-۲)

ژباړه: بې شکه هغه مومنان کامیاب دي، چې په خپلو لمونځونو کې په عاجزۍ ولاړ وي.

### د خشوع لاملونه:

ګرانه وروره!

په لمانځه کې د خشوع او خضوع لپاره اساسي خبره دا ده، چې د زړه له کومې مو دا یقین وي، چې زه چاته ولاړ یم هغه زما رب دی او زه یې غلام یم، هغه پرما دومره مهربان دی، چې دا ژوند او د ژوند ټول نعمتونه یې را په برخه کړي دي او بل دا چې شپه ورځ د هغه د نعمتونو راباندې باران وي، کله چې مو په زړه کې حالت راپیدا شي، نو ستاسو بدن به له عاجزۍ

(۱) سنن ابي داود.

سره د رب العلمین په حضور کې ولاړ وي، په داسې لمانځه کې خوشحالي پیدا کیږي، چې همدا د خشوع او خضوع سبب هم دی، له دې سره لمونځ د بنده لپاره د بریالیتوب زیری هم ګرځي، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

أَنْ تَعْبُدَ اللهَ كَأَنَّكَ تَرَاهُ فَإِنْ لَمْ تَكُنْ تَرَاهُ فَإِنَّهُ يَرَاكَ.(۱)

ژباړه: که چیرې د الله عبادت کوې، نو داسې تصور وکړه، چې زه خپل مالک وینم، خو که د اخلاص دا مرتبه در په برخه نه وي، نو کم تر کم دومره تصور وکړئ، چې ما خو خپل خالق ويني.

له دې امله رسول الله صلی الله علیه وسلم به هم د ښایسته عبادت غوښتنه کوله او فرمایل به یې:

اَللَّهُمَّ أَعِنِّي عَلَى ذِكْرِكَ وَشُكْرِكَ وَحُسْنِ عِبَادَتِكَ.(۲)

ژباړه: ای الله! ما ته د خپل ښایسته ذکر، شکر او ښه عبادت توان راکړه.

## ۱۲- د رسول الله صلی الله علیه وسلم پیروي د دین روح دی

ګرانه وروره!

بې شکه لمونځ یو بشپړ عبادت دی، چې د بدني، قولي او قلبي عبادتونو غوره نمونه ده، خو دا عبادت هغه مهال د قبولیت سند ترلاسه کوي، چې کله د رسول الله صلی الله علیه وسلم په طریقه اداء شي رسول الله صلی الله علیه وسلم د لمانځه ارزښت د نورو شیانو په پرتله په ډېر ښه ډول بیان کړی دی او په خپله وینا او عمل یې مسلمانانو ته د هغې بلنه ورکړې ده، تر دې چې یو ځلې رسول الله صلی الله علیه وسلم په منبر د لمانځه لپاره

(۱) صحیح مسلم: الایمان، حدیث: ۸.

(۲) سنن ابي داود: باب في الاستغفار، حدیث: ۱۵۲۲.

امامت کاوه، پر منبر یې قیام او رکوع وکړه، لاندې راکوز شو سجده یې وکړه، بیا منبر ته وخوت، کله چې له لمانځه څخه وزګار شو، نو ویې فرمایل:

إِنَّمَا صَنَعْتُ هَذَا لِتَأْتَمُّوا وَلِتَعَلَّمُوا صَلَاتِي.(۱)

ژباړه: ما دا کار له دې امله وکړ، چې تاسو په لمانځه کې زما پیروي وکړئ او زما د لمانځه کیفیت معلوم کړئ.

همدارنګه رسول الله صلی الله علیه وسلم بیا هم زور ورکړی، خپله پیروي یې واجبه ګرځولې او فرمایلي یې دي:

صَلُّوا كَمَا رَأَيْتُمُونِي أُصَلِّي.(۲)

ژباړه: تاسو هغه ډول لمونځ کوئ، څنګه چې ما وینئ.

**اسلام د اشخاصو دین نه، بلکې د الهي لارښوونو نوم دی:**

ګرانه وروره/خورجانه!

اسلام د غوښتنو، ذاتي فکر، قیاس او اجتهاد نوم نه دی، بلکې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د سنتو نوم دی.

الله تعالی فرمایي:

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ أَطِيعُوا۟ ٱللَّهَ وَأَطِيعُوا۟ ٱلرَّسُولَ وَلَا تُبْطِلُوٓا۟ أَعْمَٰلَكُمْ﴾.

(محمد:۳۳).

ژباړه: ای مومنانو! د الله تعالی او د هغه د رسول پیروي وکړئ او خپل عملونه مه بربادوئ.

په دې معنا چې که ستاسو عملونه د الله تعالی او د رسول الله صلی الله

---

(۱) صحیح البخاري: الجمعة، حدیث: ۹۱۷.

(۲) صحیح البخاري: الاذان، حدیث: ۶۳۱.

علیه وسلم د اطاعت په چوکاټ کې وشي، نو الله تعالی به یې قبول کړي، او که په دې چوکاټ کې ترسره نه شي، نو داسې اعمال الله تعالی نه قبلوي، اګر که عمل د سروزرو هم وي.

الله تعالی یوازې هغه عملونه قبلوي، چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په طریقه ترسره شوي وي، له دې پرته نور عملونه کوم ارزښت نه لري

**د رسول الله صلی الله علیه وسلم په سرغړونه کې د لمانځه نه قبلېدل:**

رسول الله صلی الله علیه وسلم په دې اړه فرمایي:

ان اول مایرفع من هذه الدین الامانة، وان اخر مایبقی من هذه الدین الصلاة.(۱)

ژباړه: الله به د ځمکې له مخ څخه لومړی امانت پورته کړي او اخري شی به لمونځ وي (خلک به تر قیامته پورې لمونځ،نه اداء کوي) خو زیاتره لونځ کوونکي به داسې وي، چې لمونځونه به اداء کوي، خو د دې لمونځونه ثواب به په لاس نه ورځي.

همدارنګه په طبراني کې یوبل حدیث داسې دی:

وَإِنَّ الرَّجُلاً لَيُصَلِّي سِتِّينَ سَنَةً مَا تُقْبَلُ لَهُ صَلَاةٌ.(۲)

ژباړه: یو شخص به داسې وي، چې شپېته کاله به لمونځونه وکړي، خو یو لمونځ به یې هم قبول نه شي.

زما ګرانه وروره!

لږ باید پر دې فکر وکړو، اخر کوم سبب دی چې لمونځونه نه قبلېږي؟ د شپېته کالو لمونځونه ولې برباد ېږي؟ نېکۍ ولې له منځه ځي؟ د دې ټولو

(۱) الجامع الصغیر.
(۲) معجم الطبراني.

لامل دا دی، چې مور وینو، ظاهري عمل کوم دی، خو دې ته نه ګورو، چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم سنت طریقه په دې اعمالو کې څه ده؟

**د رسول الله صلی الله علیه وسلم د پیروۍ ګټې:**

**ګرانه وروره!**

لږ دې حدیث ته هم فکر وکړه،، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

مَنْ تَوَضَّأَ كَمَا أُمِرَ، وَصَلَّى كَمَا أُمِرَ غُفِرَ لَهُ مَا قَدَّمَ مِنْ عَمَلٍ.[1]

ژباړه: څوک چې زما په طریقه اودس وکړي او لمونځ هم زما په طریقه اداء کړي، نو الله به د هغه ټول ګناهونه وبښي.

**ګرانه وروره!**

دا اوس ته پرتله کړه، یو لور ته د شپېته کالو لمونځونه نه قبلېږي، ځکه چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په طریقه نه وي او بل لور ته یو اودس او یو لمونځ چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په طریقه وي، ثواب یې دومره ډېر دی، چې ټول ګناهونه پرې ببښل کېږي.

**اصل دین څه شی دی؟:**

کوم شی ډېر ارزښتمن دی؟ د دین مینه او روح څه شی دی؟ د دې پوښتنو ځواب د رسول الله صلی الله علیه سولم په پیروۍ کې نغښتی دی، لمونځونه زده کړئ، د لمونځونو ساتنه وکړئ او پابند یې اوسئ.

**لمونځ د ګناهونو کفاره:**

د جابر رضي الله عنه په روایت رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

مَثَلُ الصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ كَمَثَلِ نَهَرٍ جَارٍ غَمْرٍ عَلَى بَابِ أَحَدِكُمْ

---

(۱) النسايي: الطهارة.

يَغْتَسِلُ مِنْهُ كُلَّ يَوْمٍ خَمْسَ مَرَّاتٍ.[1]

ژباړه: پنځه لمونځونه داسې مثال لري، لکه د یو چا د کور مخې ته چې نهر بهيږي او له تاسو څخه یو تن په کور کې پنځه ځلې لامبي.

مطلب دا، لکه څرنګه چې په ورځ کې په پنځه ځله لامبلو د انسان پر بدن کوم خیری نه پاتې کيږي، همدارنګه په پنځه وخته د جمعې په لمانځه هم د هغه ګناهونه وينځل کيږي.

ګرانه وروره!

زه له تا څخه په ډېره مينه غوښتنه کوم، چې خپل لمونځ د رسول الله په طريقه اداء کړه، ترڅو مو لمونځ د رب العالمين په حضور کې د قبلېدو وړ وګرځي، لکه څرنګه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم له ټولو انبیاو غوره دی، په دې ډول د هغه طريقې هم د ځمکې پر مخ له ټولو طريقو غوره دي، لکه څرنګه چې هر څوک نېغ حديث ته نه شي رسېدای، نو ضرور په کور کې د لمانځه کتاب ساتئ خو باید په یاد مو وي، چې کتاب داسې وي، چې له صحيحو احادیثو څخه ترتيب شوی وي.

---

(1) صحيح مسلم: المساجد، حديث: ٦٦٨.

# ۱۳- د لمانځه پابندي کوئ

ګرانه وروره!

په ټولو لمونځونو کې او په ځانګړي ډول د سهار په لمانځه کې له بې پرواهۍ او سستيا څخه ځان وژغوره، هسې نه چې په دې کار سره له منافقانو سره ورته وګڼل شې.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:

إِنَّ أَثْقَلَ صَلاَةٍ عَلَى الْمُنَافِقِينَ صَلاَةُ الْعِشَاءِ وَصَلاَةُ الْفَجْرِ وَلَوْ يَعْلَمُونَ مَا فِيهِمَا لأَتَوْهُمَا وَلَوْ حَبْوًا.(۱)

ژباړه: بې شکه پر منافقانو دوه لمونځونه ډېر درانده وي، چې يو يې د سهار او بل د ماسختن لمونځ دی، که چېرې دوی ته د دې لمونځونو د ثواب پته ولګي، نو په زنګنونو به دې لمونځونو ته حاضرېږي.

د ټولې شپې د قيام ثواب:

ګرانه وروروجانه!

بايد پردې پوه شې، چې د ماسختن او سهار په لمانځه الله تعالی د ټولې شپې د عبادت ثواب درکوي.

عثمان بن عفان رضي الله عنه وايي، چې ما له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه واورېده:

مَنْ صَلَّى الْعِشَاءَ فِي جَمَاعَةٍ فَكَأَنَّمَا قَامَ نِصْفَ اللَّيْلِ وَمَنْ صَلَّى الصُّبْحَ فِي جَمَاعَةٍ فَكَأَنَّمَا صَلَّى اللَّيْلَ كُلَّهُ.(۲)

چا چې په جمعې سره د ماسختن لمونځ اداء کړ، ګويا هغه نيمه شپه

---

(۱) صحيح مسلم: المساجد، حديث: ٦٥١.

(۲) صحيح مسلم: المساجد، حديث: ٦٥٦.

عبادت وکړ او چا چې د سهار لمونځ په جمع وکړ، نو ګویا هغه ټوله شپه عبادت وکړ.
بې شکه د دې ستړې ګټې د ترلاسه کولو لپاره لږې هڅې ته اړتیا پیښیږي.

**د قیامت په ورځ د بشپړې رڼا زېری:**

ګرانه وروره!
کوم شخص چې د استراحت او خوب خوند پر بستره پرېږدي، د لمانځه لپاره جومات ته ځي او په توره تیاره کې هم د جمعې لمانځه پابند وي، نو دا شخص دې په خپل اخلاصمن عمل خوښ شي.
رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:
بَشِّرِ الْمَشَّائِينَ فِي الظُّلَمِ إِلَى الْمَسَاجِدِ، بِالنُّورِ التَّامِّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.[1]
ژباړه: هغه کسانو ته د قیامت د ورځې د بشپړې رڼا زېری ورکړئ، چې په تیارو کې د جومات پر لور د لمانځه لپاره روان وي.

**د الهي لیدنې لپاره څو ګټور لاملونه:**

زما ګرانه وروره!
لاندې څو داسې چارې په ګوته کیږي، چې د سهار د لمانځه پر مهال او په جمعې کې به له تاسو سره مرستندوی وګرځي.
(۱) د الله تعالی مینه مو باید دومره په زړه ننوځي، چې په خوښۍ سره بستره پرېږدئ او د لمانځه لپاره د جومات پر لور روان شئ.
(۲) د خوب د اذکارو پابند اوسئ.
(۳) له ویده کېدو مخکې پردې نیت خملئ، چې ان شاء الله د سهار لمونځ

(۱) سنن ابن ماجه: المساجد والجماعات، حديث: ۷۸۱.

به په جمع کوم.

(۴) په اوداسه کې ویده شئ.

(۵) د ماسختن له لمانځه څخه وروسته سمدستي ویده شئ.

(۶) د شپې لږه ډوډۍ وخورئ، ځکه چې ډېره ډوډۍ معده درنده ساتي او ورسره په سهار کې پاڅېدل ستونزمن وي.

(۷) له ویده کېدو مخکې چاته تاکید وکړئ، چې تاسو د سهار لمانځه لپاره په خپل وخت پاڅوي.

(۸) کله چې له خوب څخه بیدار شئ، نو سمدستي دا دعا ووایئ:

الْحَمْدُ للهِ الَّذِي أَحْيَانَا بَعْدَ مَا أَمَاتَنَا وَإِلَيْهِ النُّشُورُ.(۱)

(۹) سمدستي اودس وکړئ، سنت لمونځ اداء کړئ او بیا د جومات پر لور روان شئ.

(۱۰) داسې نه چې د بې پروا کېدو له امله بیا ویده شئ.

**د شیطان خطرناکه پلمه:**

ابوهریرة رضي الله عنه وایي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

يَعْقِدُ الشَّيْطَانُ عَلَى قَافِيَةِ رَأْسِ أَحَدِكُمْ إِذَا هُوَ نَامَ ثَلَاثَ عُقَدٍ يَضْرِبُ على كُلِّ عُقْدَةٍ عَلَيْكَ لَيْلٌ طَوِيلٌ فَارْقُدْ فَإِنِ اسْتَيْقَظَ فَذَكَرَ اللهَ انْحَلَّتْ عُقْدَةٌ فَإِنْ تَوَضَّأَ انْحَلَّتْ عُقْدَةٌ، فَإِنْ صَلَّى انْحَلَّتْ عُقَدُهُ فَأَصْبَحَ نَشِيطًا طَيِّبَ النَّفْسِ وَإِلاَّ أَصْبَحَ خَبِيثَ النَّفْسِ كَسْلَانًا.(۲)

ژباړه: شیطان له تاسو څخه د هر یوه بسترې ته درې درې غوټې اچوي کله

---

(۱) صحیح البخاري:۶۳۱۲.

(۲) صحیح البخاري: تهجد، باب عقد الشیطان...... حدیث : ۱۱۶۲ .

چې یو څوک ویده کېږي، هر یوه غوټه په منتر پو کوي، ستا لپاره اوږده شپه پرته ده، ښایسته ویده شه، که چېرته یو شخص راپاڅي او الله تعالی یاد کړي، نو یوه غوټه خلاصه شي، بیا کله چې دغه شخص اودس وکړي، نو دویمه غوټه خلاصه شي، بیا کله چې لمونځ وکړي، نو ټولې غوټې خلاصې شي او دا شخص په داسې حال کې سبا کړي، چې نفس یې پاک وي، که نه نو په داسې حال کې به سبا کړي، چې نفس به یې سست او چټل وي.

**د لمونځ کوونکو سره اړیکه:**

په پرله پسې په یو جومات کې د سهار لمونځ اداء کوه، ستا جومات ته په نه راتګ به خلک او ستا ملګري ستا په اړه پوښتنه کوي.

الا یانفس ویحك ساعدینی　　　بسعی منك فی ظلم اللیالی

لعلك فی القیامة ان تفوزی　　　بطیبا لعیش فی تلك العلالی

ژباړه: خبر شه ای زما نفسه ! پر تا افسوس دی، ته له ما سره مرسته وکړه او د شپې په تیاره کې مې جومات پر لور روان کړه، کېدای شي چې د قیامت په ورځ بریالیتوب ترلاسه کړو او په جنت کې ښه ژوند تېر کړو.

## ۱۴- د ماښختن له لمانځه وروسته سمدستي ویده کېدل

زما ګرانه وروره!

د ماښختن له لمانځه وروسته بې ځایه ویښ کېناستل د شریعت پر ضد عمل دی، نو ځکه دا خپل عادت وګرځوه، چې د ماښختن له لمانځه وروسته سمدستي ویده شې.

ابوالمنهال سیار بن سلامة رضي الله عنه فرمایي:

كَانَ يَكْرَهُ النَّوْمَ قَبْلَ الْعِشَاءِ وَالْحَدِيثَ بَعْدَهَا.[1]

ژباړه: رسول الله صلی الله علیه وسلم به د ماښختن له لمانځه مخکې خوب او وروسته خبرې اترې نه خوښولې.

**د ماښختن وروسته د ویښ پاتې کېدو زیانونه:**

ګرانه وروره!

د ماښختن له لمانځه مخکې خوب له دې امله منعه شوی، چې کېدای شي د ماښختن لمونځ فوت شي، په دې توګه د ماښختن له لمانځه وروسته خبرې هم ناخوښه ګڼل شوي، ځکه چې دا وېره، چې یو مسلمان د تهجدو او یا هم د سهار له لمانځه بې برخې شي، د ماښختن له لمانځه وروسته سمدستي ویده کېدل هم ښه عمل دی، چې ورځ به د لمانځه په څېر په غوره عمل پای ته ورسېږي.دا مو هم باید په یاد وي، لکه څرنګه چې د ماښختن وروسته خبرې اترې ناخوښه ګڼل شوي، په دې ډول نور کارونه هم ناخوښه ګڼل شوي دي، په داسې حال کې چې دیني کار نه وي، لکه شطرنج لوبه، تلوېزون، تاش، لډو اوداسې نور.

---

(۱) صحیح البخاري: مواقیت الصلاة، حدیث: ۵۶۸.

# ۱۵ - له لمانځه وروسته اذکار

کله چې له لمانځه څخه وزګار شئ، نو د اذکارو پابند اوسئ لکه ۳۳ ځلې سبحان الله ویل، ۳۳ ځلې الحمدلله ویل او ۳۴ ځلې الله اکبر ویل او یو ځلې دا دعا ویل :

لااله الاالله وحده لا شريک له له الملک وله الحمد وهو على کل شي قدير.

له ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل :

« مَنْ سَبَّحَ اللَّهَ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلاَةٍ ثَلاَثًا وَثَلاَثِينَ وَحَمِدَ اللَّهَ ثَلاَثًا وَثَلاَثِينَ وَكَبَّرَ اللَّهَ ثَلاَثًا وَثَلاَثِينَ فَتِلْكَ تِسْعَةٌ وَتِسْعُونَ وَقَالَ تَمَامَ الْمِائَةِ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ غُفِرَتْ خَطَايَاهُ وَإِنْ كَانَتْ مِثْلَ زَبَدِ الْبَحْرِ ».

څوک چې له هر لمانځه وروسته ۳۳ ځلې سبحان الله، ۳۳ الحمدلله، ۳۳ ځلې الله اکبر او په سلم ځل دا دعا : لااله الا الله وحده لا شريك له له الملك وله الحمد وهو على كل شئ. قدير. ووايي، که چېرې د ده ګناهونه د سمندر د ځګ هومره هم وي، نو وبه بښل شي

د نورو اذکارو لپاره د شيخ سعيد بن علي بن وهف القحطاني کتاب حصن المسلم وګورئ.

**له لمانځه وروسته په جومات کې د ایسارېدو ثواب :**

همدارنګه بېره مه کوئ چې له جومات څخه ووځئ، رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :

- له لمانځه وروسته په جومات کې ایسارېدل، له هغو درې اعمالو

ثخه دي:

د الله غوره پرېښتې د دې اعمالو په لیکنه او اسمان ته په وړلو کې په خپل منځ کې شخړه کوي.

- دا اعمال د کفاراتو په نامه يادېږي.
- د دې اعمالو چې څوک ساتنه کوي، خپلو ځان داسې له ګناهونو پاکوي، لکه څرنګه چې يو زېږېدلی ماشوم له ګناهونو څخه پاک وي، د دې خبرو يادونه په ترمذي کې د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما په حديث کې هم شوې:

أَتَانِي اللَّيْلَةَ رَبِّي تَبَارَكَ وَتَعَالَى فِي أَحْسَنِ صُورَةٍ، قَالَ أَحْسَبُهُ فِي الْمَنَامِ فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ! هَلْ تَدْرِي فِيمَ يَخْتَصِمُ المَلَأُ الأَعْلَى؟ قَالَ: قُلْتُ:نَعَمْ فِي الكَفَّارَاتِ، وَالكَفَّارَاتُ:

- المُكْثُ فِي المَسَاجِدِ بَعْدَ الصَّلَاةِ.
- وَالْمَشْيُ عَلَى الْأَقْدَامِ إِلَى الْجَمَاعَاتِ.
- وَإِسْبَاغُ الوُضُوءِ فِي المَكَارِهِ.

وَمَنْ فَعَلَ ذَلِكَ عَاشَ بِخَيْرٍ وَمَاتَ بِخَيْرٍ، وَكَانَ مِنْ خَطِيئَتِهِ كَيَوْمِ وَلَدَتْهُ أُمُّهُ.[1]

د شپې په ښه شکل الله رابنکاره شو. راوي وايي، چې زه فکر کوم هغه وفرمايل:

د خوب په حالت کې (الله تعالی يې په خوب کې وليده)، الله تعالی

(۱) صحيح الترمذي: ۹۸.

وفرمایل: ای محمده! ایا تا ته هغه خبرې معلومې دي، چې زما غوره پرښتې پرې په خپل منځ کې شخړه کوي؟ ما وویل: هو! هغه کفارات دي او کفارات دا دي:

- له لمانځه وروسته په جومات کې ایسارېدل.
- د جمعې د لمانځه د اداء کولو لپاره پیاده تلل.
- بشپړ اودس کول، اګر چې زړه یې ونه غواړي.

چا چې دا اعمال خپل کړه، په امن کې به ژوند تېروي او په همدې حالت کې به وفات کېږي هم، او خپل ځان به داسې له ګناهونو پاک کړي، لکه څرنګه چې نوی زېږېدلی ماشوم له ګناه څخه پاک وي.

الله اکبر! دا درې واړه اعمال څومره لوړه درجه لري، ای زموږ مهربانه ربه! موږ هم د دې اعمالو په خپلونکو کې شامل کړه.

**اتباع نه، ابتداع (پیروي نه کول، بدعت کول):**

له دې پرته دا یوه نامسنون عمل دی، چې ځینې خلک له لمانځه وروسته سمدستي له ځانه جوړ شوی درود وايي، دا هېڅ ثواب نه لري، له داسې کارونو څخه ځان وژغورئ، ځکه چې مسلمان باید اتباع (پیروي) وکړي، نه ابتداع (په دین کې د نوي شي د جوړولو حق نه لري).

## ۱۶ - په جنت کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم ملګرتیا

ګرانه وروره!

له فرایضو سره ځان په خپله خوښه د نفلونو هم عادي جوړ کړه، باید په یاد مو وي، چې تل د نفلونو عادت جنت ته د ننوتلو سبب ګرځي. له ربیعه بن کعب رضي الله عنه څخه روایت دی:

كُنْتُ أَبِيتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صلی الله علیه وسلم فَأَتَيْتُهُ بِوَضُوئِهِ

وَحَاجَتِهِ فَقَالَ لِي سَلْ فَقُلْتُ أَسْأَلُكَ مُرَافَقَتَكَ فِي الْجَنَّةِ. قَالَ: أَوَغَيْرَ ذَلِكَ قُلْتُ هُوَ ذَاكَ. قَالَ: فَأَعِنِّي عَلَى نَفْسِكَ بِكَثْرَةِ السُّجُودِ.(۱)

ژباړه: ما به د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کې شپه تېروله، هغه ته به مې د اوداسه اوبه او نور د اړتیا شیان (مسواک او داسې نور) برابرول، (یوه شپه له خوشحالېدو وروسته راته) رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: (د دنیا او دین) څه شی را څخه وغواړه؟ ما وویل: غواړم چې په جنت کې درسره ملګری یم، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: نور هم څه وغواړه؟ ما وویل بس همدا غواړم، بیا یې راته وفرمایل: ته په دې کار کې د ځان لپاره له ماسره په ډېرو سجدو کې مرسته وکړه (ډېرې سجدې کوه).

یعنې په کثرت سره نوافل اداء کوه، په دې ډول به په جنت کې ستا درجې لوړې شي او زما ملګرتیا به دې په برخه شي.

**د نفلو ارزښت:**

د قیامت په ورځ به د فرضونو په پاتې کېدو له نفلو څخه کار اخیستل کېږي او د فرایضو ځای به نیسي.

ابوهریره رضي الله عنه وایي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

إِنَّ أَوَّلَ مَا يُحَاسَبُ بِهِ العَبْدُ يَوْمَ القِيَامَةِ مِنْ عَمَلِهِ صَلاَتُهُ، فَإِنْ صَلُحَتْ فَقَدْ أَفْلَحَ وَأَنْجَحَ، وَإِنْ فَسَدَتْ فَقَدْ خَابَ وَخَسِرَ، فَإِنْ انْتَقَصَ مِنْ فَرِيضَتِهِ شَيْئاً، قَالَ الرَّبُّ عَزَّ وَجَلَّ: انْظُرُوا هَلْ لِعَبْدِي مِنْ

---

(۱) صحیح المسلم: الصلاة، حدیث: ۴۸۹.

تَطَوُّعٍ فَيُكَمَّلَ بِهَا مَا انْتَقَصَ مِنَ الفَرِيضَةِ، ثُمَّ يَكُونُ سَائِرُ عَمَلِه عَلَى هذا.[۱]

ژباړه: له بنده څخه به د قیامت په ورځ تر ټولو لومړنۍ پوښتنۀ د لمانځه کیږي، که چیرې لمونځ یې صحیح و، نو هغه بریالیتوب تر لاسه کړه او که چیرې دا عمل یې صحیح نه و، نو بې شکه له ناکامۍ سره مخ شو. که چیرې د هغه په فرایضو کې کمی و، نو الله تعالی به وفرمایي: زما د بنده په عملنامه کې نوافل وګورئ، تر څو د هغې په واسطه بشپړ شي. بیا به په همدې ډول د نورو اعمالو حساب کیږي.

**له فرض لمونځونو سره د سنت موکدو فضیلت:**

همدارنګه د فرض لمونځونو مخکې او وروسته چې کوم نوافل (سنت) دي، د هغې هم پابند اوسئ.

ام المؤمنین ام حبیبه بنت ابي سفیان رضي الله عنهما فرمایي، چې ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه واورېده:

مَا مِنْ عَبْدٍ مُسْلِمٍ يُصَلِّي لِلهِ كُلَّ يَوْمٍ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً تَطَوُّعًا غَيْرَ فَرِيضَةٍ إِلاَّ بَنَى اللهُ لَهُ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ.

ژباړه: کوم مسلمان بنده چې د فرض لمونځونو پرته هره ورځ دولس رکعته نفل لمونځ کوي، نو الله تعالی به ورته په جنت کې کور جوړ کړي.

اللَّهُمَّ أَعْطِنَا وَلَا تَحْرِمْنَا.

لږ د الله تعالی لپاره فکر وکړئ! ګرانه وروره!

که چیرې له موږ څخه چاته د غوره ځای، غوره کور وراندیز وشي، نو هر

(۱) سنن الترمذي: حدیث: ۴۱۳ .

ځوک به د دې د ترلاسه کولو په هڅه کې وي، که هر ډول ستونزه وي، دا به ورته تیار وي، لوړ محلونه خو الله تعالی جوړ کړي دي، د دې د لاس ته راوړنې لپاره پر نبوي سنتو عمل ډېر ضروري دی

**پورتني نوافل کله اداء کېږي ؟**

**ځواب:** ام حبیبه رضي الله عنها فرمايي : چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل :

مَنْ صَلَّى فِي يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً بُنِيَ لَهُ بَيْتٌ فِي الجَنَّةِ: أَرْبَعًا قَبْلَ الظُّهْرِ، وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَهَا، وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ المَغْرِبِ، وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ العِشَاءِ، وَرَكْعَتَيْنِ قَبْلَ الْفَجْرِ.[1]

ژباړه: ځوک چې په شپه او ورځ کې دولس رکعته لمونځ ( نفل ) اداء کوي، نو د هغه لپاره به په جنت کې یو کور جوړ کړای شي، (د دې دولسو رکعتو تفصیل په دې ډول دی ) څلور رکعته له ماسپښین مخکې او دوه رکعته ترې وروسته، دوه رکعته له ماښام لمانځه څخه وروسته، دوه رکعته له ماسختن وروسته او دوه رکعته د سهار له لمانځه مخکې.

**د نفلو قضايي :**

**ګرانه وروره !**

دا نفل په پابندۍ سره اداء کوه، بیا هم که چېرې له فرض لمانځه څخه چې کوم نفل وړاندې اداء کېږي او هغه قضاء شي او یا دا چې لمونځ پیل شوی وي، نو بیا یې د فرض لمانځه وروسته ادا ء کړه لکه څرنګه چې له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه ثابت شوي دي، عایشه رضي الله عنها فرمايي :

---

(۱) سنن الترمذي: الصلاة، حدیث : ۴۱۵ .

أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا لَمْ يُصَلِّ أَرْبَعًا قَبْلَ الظُّهْرِ صَلَّاهُنَّ بَعْدَهَا.[1]

ژباړه: کله به چې رسول الله صلی الله علیه وسلم له ماسپښین څخه مخکې څلور رکعته ونه کړه، نو د ماسپښین (له فرضو) وروسته به یې اداء کول

**څلور رکعته د رحمت د ترلاسه کولو لپاره:**

همدارنګه د مازديګر له لمانځه مخکې هم د څلورو رکعتو سنتو پابند اوسئ، ځکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د دې شخص په حق کې د رحمت دعا کړې ده.

له عبدالله بن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

رَحِمَ اللهُ امْرَأً صَلَّى قَبْلَ الْعَصْرِ أَرْبَعًا.[2]

ژباړه: الله جل جلاله دې په هغه چا رحم وکړي، چې څوک د مازديګر لمانځه څخه مخکې څلور رکعته کوي.

**نوافل په کور کې:**

زما ګرانه وروره!

بايد په ياد مو وي، کوم نوافل او سنت چې مخکې يې يادونه وشوه، بايد په کور کې اداء شي، ځکه يو خو په دې کار سره انسان له ځان ښودنې ژغورل کېږي او له بله اړخه په کور کې برکت پيدا کېږي په کوم کور کې چې نوافل نه اداء کېږي، نو هغه د دهدېرې په څېر حيثيت لري، لکه څرنګه چې قبرونه له عمل او عبادت څخه خالي وي، په دې توګه دا کورونه هم له

---

(۱) سنن الترمذي: ابواب الصلاة، حديث: ۴۲۶.

(۲) سنن ابي داود: باب الصلاة، حديث: ۱۲۷۱.

عمل او عبادت څخه بې برخې کیږي

له عبدالله بن عمر رضي الله عنهما څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

اجْعَلُوا مِنْ صَلاَتِكُمْ فِي بُيُوتِكُمْ، وَلاَ تَتَّخِذُوهَا قُبُورًا.[١]

ژباړه: تاسو په لمونځونو کې څه برخه په کورونو کې اداء کوئ او له هغې هدیرې مه جوړوئ.

له څه برخې څخه نوافل مراد دي.

## ١٧ - د لمونځ کوونکي په مخ کې د تېرېدو ممانعت

ګرانه وروره ! د لمونځ کوونکي په مخ کې تېرېدل سخته ګناه ده، په دې کې له احتیاط څخه کار واخلئ.

د ابوالجهیم عبدالله بن حارق بن صمه انصاري رضي الله عنه په روایت رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

لَوْ يَعْلَمُ الْمَارُّ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّي مَاذَا عَلَيْهِ لَكَانَ أَنْ يَقِفَ أَرْبَعِينَ خَيْرًا لَهُ مِنْ أَنْ يَمُرَّ بَيْنَ يَدَيْهِ، قَالَ الراويُ: لاَ أَدْرِي قَالَ أَرْبَعِينَ يَوْمًا، أَوْ أَرْبَعِينَ شَهْرًا، أَوْ أَرْبَعِينَ سَنَةً.[٢]

ژباړه: که چېرې دغه شخص، چې د لمونځ کوونکي پر وړاندې تېرېږي او له ګناه یې خبر شي، نو له دې کار څخه به تر څلویښتو پورې ودرېدل غوره وبولي. راوي وايي، چې زما په یاد نه شي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم څلوېښت ورځې وښودلې، څلوېښت میاشتې او که څلوېښت کاله لمونځ کونکی باید هڅه وکړي، چې لمونځ سترې او یا هم کومې ستنې ته

---

(١) صحیح البخاري: الصلاة، حدیث : ٤٣٢.

(٢) صحیح البخاري: الصلاة، حدیث : ٥١٠ .

مخامخ وکړي، ځکه یو خو تېرېدونکو ته تکلیف وي او ځینې ناخبره خلک هم تېرېږي. که چېرې ستره یا کوم بل شی نه وي، نو تېرېدونکي خلک دې د مهربانۍ له مخې درې متره وړاندې وړاندې او یا هم د ډېر احتیاط لپاره څلور پنځه صفه وړاندې تېر شي.

## ۱۸ - د شپې د قیام ارزښت او فضیلت

زما ګرانه وروره!

الله تعالی ته د عاجزۍ غوره وخت د شپې اخري برخه ده، رسول الله صلی الله علیه وسلم د شپې د پاڅېدو، تهجدو او سهار د پاڅېدو تاکید کړی او فرمایلي یې دي:

عَلَيْكُمْ بِقِيَامِ اللَّيْلِ فَإِنَّهُ دَأَبُ الصَّالِحِينَ قَبْلَكُمْ، وَهُوَ قُرْبَةٌ إِلَى رَبِّكُمْ، وَمَكْفَرَةٌ لِلسَّيِّئَاتِ، وَمَنْهَاةٌ عن الإِثْمِ.[1]

تاسو هرو مرو د تهجدو لمونځ اداء کوئ، ځکه چې دا له تاسو مخکې د نېکانو تګلاره وه او ستاسو لپاره رب العالمین ته د نږدېوالي، د ګناهونو د رژېدو او (له نورو) ګناهونو څخه د ژغورنې سبب دی

په قران کریم کې د شپې پاڅېدل (قیام الیل) د ایماندارو او پرهېزګارانو ځانګړې صفت ښودل شوی، لکه په اړه یې چې الله تعالی فرمایي:

﴿ كَانُوا قَلِيلًا مِّنَ اللَّيْلِ مَا يَهْجَعُونَ ۝ ﴾. الذاریات:۱۷).

ژباړه: مؤمنان په دنیا کې د شپې لږه برخه ویده کېږي.

ګرانه ورور جانه!

په دې کې شک نه شته، چې لمونځ د روح غذا او د پرهېزګارۍ یو دلیل دی، له دې سره په لمانځه کې نور خوند هم زیاتېږي، له دې امله ځانونه د

---

(۱) صحیح ابن خزیمه.

تهجدو پابند وګرځوئ او د شپې پاڅېدل خپل عادت وګرځوئ.

**وترو ته ترغیب:**

له دې پرته وتر هم ضرور اداء کوئ، دا خبره سمه ده، چې د وترو لمونځ موکد سنت دی، په دې کې سستیا په کار نه ده، ځکه چې باید هر مسلمان د رسول الله صلی الله علیه وسلم د سنتو پیروي وکړي علي رضي الله عنه فرمایي:

الوِتْرُ لَيْسَ بِحَتْمٍ كَصَلَاةِ المَكْتُوبَةِ، وَلَكِنْ سَنَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: إِنَّ اللَّهَ وِتْرٌ فَأَوْتِرُوا يَا أَهْلَ القُرْآنِ.[1]

ژباړه: د وتر لمونځ د فرضو په څېر لازمي نه دی، خو رسول الله صلی الله علیه دغه تاکلي دي (دا سنت دي) رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: الله تعالی وتر دی (مطلب دا چې په خپل ذات، صفاتو او افعالو کې یو دی، کوم سیال نه لري) او وتر خوښوي، پس ای د قرانکریم خاوندانو! تاسو وتر کوئ.

(۱) حسن سن ابي داود:۱٤۱٦.

# ۱۹- د جُمعې د لمانځه واجب کېدل او د دې ورځې غوره والی

ګرانه وروره!

د جمعې د مبارکې ورځې لمونځ په هر عاقل، بالغ، مکلف او مقیم مسلمان فرض دي، د فرضو لمونځونو په څېر د جمعې لمونځ هم ډېر ارزښت لري، او دا له نورو لمنځونو څخه لږه اندازه غوره دی، د ابوهریرة رضي الله عنه په روایت رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

إِذَا كَانَ يَوْمُ الجُمُعَةِ وَقَفَتِ المَلاَئِكَةُ عَلَى بَابِ المَسْجِدِ يَكْتُبُونَ الأَوَّلَ فَالأَوَّلَ، وَمَثَلُ المُهَجِّرِ كَمَثَلِ الَّذِي يُهْدِي بَدَنَةً، ثُمَّ بَيْضَةً،فَإِذَا خَرَجَ الإِمَامُ طَوَوْا صُحُفَهُمْ، وَيَسْتَمِعُونَ الذِّكْرَ.[1]

ژباړه: کله چې د جمعې ورځ پیل شي، نو پرېښتې د جومات په دروازه کې ودرېږي، چې تر ټولو لومړی او وروسته راتلونکي کسان لیکي، (په لومړي وخت کې چې کوم شخص جومات ته ننوځي، دومره ثواب لري، چې لکه چا د الله تعالی په لاره کې اوښ حلال کړی وي، د دویم شخص دومره ثواب کېږي، لکه چې غوا یې حلاله کړې وي، د درېیم شخص دومره ثواب کېږي، لکه پسه یې چې حلال کړی وي) بیا لکه چرګه یې چې حلاله کړې وي، بیا لکه هګۍ یې چې صدقه کړې وي، بیا کله چې امام منبر ته د خطبې لپاره وخېژي، نو پرېښتې د لیکلو کتابچې بندوي او خطبې ته غوږ نیسي

ګرانه وروره!

---

(۱) صحیح البخاري: الجمعة ،حدیث:۸۸۷.

مخکې له دې چې د جمعې لمانځه لپاره د جومات په طرف روان شئ، نو لومړی ځان ښه پاک کړئ، مسواک ووهئ، تېل یا عطر استعمال کړئ، پاک او په سپینو جامو پټ د جومات پر لور روان شئ، د خطیب صیب منبر ته تر ختلو پورې دېر نفلونه وکړئ او له دې وروسته په پوره غور سره خطبې ته غوږ ونېسئ. په دې وخت کې له هر ډول بېکاره کارونو ډډه وکړئ، له دې هم ځان وساتئ، چې د خلکو پر اوږو ځانونه مخکنې صف ته ورسوئ، پردې عمل درته یو ستر اجر په برخه کېږي.

اوس بن اوس ثقفي رضي الله عنه فرمايي، چې ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه واورېده :

مَنْ غَسَّلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَاغْتَسَلَ، ثُمَّ بَكَّرَ وَابْتَكَرَ، وَمَشَى وَلَمْ يَرْكَبْ، وَدَنَا مِنَ الإِمَامِ فَاسْتَمَعَ وَلَمْ يَلْغُ كَانَ لَهُ بِكُلِّ خُطْوَةٍ عَمَلُ أَجْرُ سَنَةٍ صِيَامُهَا وَقِيَامُهَا.(۱)

ژباړه: چاچې د جمعې په ورځ ولمبل او وختي له کوره ووتە، پیادە جومات ته لاړ او سپور لاړ نه شو، امام ته نږدې کېناست، په غور يې خطبه واورېده او کوم بېکاره حرکت يې ونه کړ، نو ده ته الله پر هر قدم د يوکال د روژې او قيام ثواب ورکوي.

ګرانه وروره !

بايد لږ غور وکړو، که چېرې تاسو د خطبې لپاره په وخت راشئ او پیاده راشئ، نو په يو قدم مو د يو کال روژې او قيام ثواب کېږي، که چېرې کوم شخص سل قدمونه پلی جومات ته لاړ، نو ثواب يې د سلو کالو روژو او قيام کېږي، کېدای شي چې دا شخص دومره عمر هم ونه لري او له نورو

(۱) سنن ابي داؤد: الطهارة، باب في الغسل يوم الجمعة، حديث:۱۳٤٥ وصححه للالباني رحمه الله.

اعمالو سره دا عمل د هغه د خلاصون مسؤل وګرځي.

**قصدا د جمعې لمونځ پرېښودل:**

همدارنګه دا هم په یاد لرئ، چې پرله پسې د جمعې لمونځ پرېښودل یو داسې خطرناک عمل دی، چې له دې سره پر زړونو مهر لګول کېږي او انسان د بریالیتوب له هیلې ناهیل کېږي.

له ابو هريرة رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم پر منبر وفرمایل:

لَيَنْتَهِيَنَّ أَقْوَامٌ عَنْ وَدْعِهِمُ الْجُمُعَاتِ، أَوْ لَيَخْتِمَنَّ اللهُ عَلَى قُلُوبِهِمْ، ثُمَّ لَيَكُونُنَّ مِنَ الْغَافِلِينَ.[1]

**دعاء:**

ای الله! هره د جمعې ورځ زموږ لپاره نېکمرغه وګرځوې. امین یارب العلمین!

## ۲۰- د جمعې په ورځ ډېر درود لوستل

رسول الله صلی الله علیه وسلم د مسلمانانو لپاره د دنیا او اخرت د نېکمرغۍ لامل دی، نو له دې امله د هر مسلمان لپاره ضروري ده چې هره ورځ پر رسول الله صلی الله علیه وسلم او په ځانګړې ډول د جمعې په ورځ ډېر درود وایي. پر درود لوستلو کوم مصرف نه کېږي او نه پرې ډېر تکلیف ګاللی شي.

له عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

---

(۱) صحیح مسلم: الجمعة، باب التغليظ في ترک الجمعة، حدیث: ۸۶۵.

أَوْلَى النَّاسِ بِي يَوْمَ القِيَامَةِ أَكْثَرُهُمْ عَلَيَّ صَلَاةً.[۱]

ژباړه: د قیامت په ورځ به ماته نږدې، زما د شفاعت تر ټولو زیات حقدار، هغه څوک وي چې تر ټولو یې زیات درود پر ما ویلی وي.

همدارنګه فرمايي:

مَنْ صَلَّى عَلَيَّ صَلَاةً صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ بِهَا عَشْرًا.[۲]

ژباړه: کوم شخص چې پر ما یو ځلې درود وايي، الله تعالى پر هغه لس رحمتونه نازلوي

د درود غوره الفاظ هغه ابراهيمي الفاظ دي چې په لمانځه کې لوستل کېږي، ځکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم صحابه کرامو ته همدا درود ښودلی و.

## ۲۱- د جُمعې په ورځ د دعا قبلېدو شېبه

زما خوږو ورونو!

الله تعالى د جمعې مبارکه ورځ پر یو بل عزت هم عزتمن کړې ده، چې په دې ورځ کې یوه داسې شېبه هم شته چې الله تعالى په کې د مسلمان دعا خامخا قبلوي، نو ځکه د جمعې په ورځ د ذکر او دعاء ډېر پابند اوسئ؛ ترڅو د دعاء د قبلېدو شېبه ومومئ. رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

يَوْمُ الْجُمُعَةِ اثْنَتَا عَشْرسَاعَةً، فيها ساعة لَا يُوجَدُ مُسْلِمٌ يَسْأَلُ اللهَ فِيهَا شَيْئًا إِلَّا أعطاهُ إِيَّاهُ، فَالْتَمِسُوهَا آخِرَ سَاعَةٍ بَعْدَ الْعَصْرِ.

ژباړه: د جمعې ورځ دولس ساعته ده، په دې کې یوه داسې ساعت هم شته

(۱) سنن ترمذي: ابواب الصلاة، باب ما جاء في فضل الصلاة على النبي حديث: ٤٨٤.

(۲) صحيح مسلم: الصلاة، حديث:٣٨٤.

چې یو مسلمان په کې له الله تعالی څخه هر څه وغواړي، نو الله تعالی یې ورته ورکوي، تاسو دا شیبه د مازدیګر له لمانځه وروسته ولټوئ.

## ۲۲ - د زکات د فرضیت تاکید

خوږو ورونو!

زکات د اسلام له پنځه ارکانو څخه درېیم رکن دی. رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

بُنِيَ الإِسْلَامُ عَلَى خَمْسٍ: شَهَادَةِ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ، وَإِقَامِ الصَّلاَةِ، وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ، وَالحَجِّ، وَصَوْمِ رَمَضَانَ.

د اسلام پنځه بناوې دي:

۱: د دې خبرې ګواهي ورکول چې له الله تعالی پرته څوک د عبادت وړ نه شته او دا چې محمد د الله تعالی بنده او رسول دی.

۲: د لمانځه قایمول.

۳: د زکات ورکول.

۴: حج کول (که چېرې مو توان وي)

۵: د رمضان د میاشتې روژې نیول.

**د زکات معنی:**

پوښتنه: د زکات مقصد څه دی؟

ځواب: په لغوي اعتبار سره د زکات معنی زیاتوالی او بله معنی یې پاکوالی دی. په شرعي اصطلاح دواړه معناوې سمې دي، د زکات په ورکولو سره پاتې مال پاکېږي او د نه ورکولو په صورت کې د فقیرانو او بې وزلو حق په کې شامل ګرځي، چې له امله یې مال ناپاکه پاتې کېږي، لکه څرنګه چې په یو حلال شي کې حرام شی شامل شي، نو حلال شی هم

حرامېږي.

په يو حديث کې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

إِنَّ اللهَ لَمْ يَفْرِضِ الزَّكَاةَ، إِلَّا لِيُطَيِّبَ مَا بَقِيَ مِنْ أَمْوَالِكُمْ.

ژباړه: الله تعالی پر تاسو زکات ځکه فرض کړی چې ستاسو پاتې مالونه پاک کړي

په قرانکريم کې هم دا خبره بيان شوې ده:

﴿ خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِم بِهَا ﴾. (التوبه: ۱۰۳).

ژباړه: ای پیغمبره) د دوی له مالونو څخه صدقه واخله چې پاکوالی او تزکیه یې پرې وشي.

له دې څخه معلومه شوه چې د زکات او صدقې په وجه انسان پاکوالی ترلاسه کوي. پاکوالی څه شی دی؟ له ګناه او بدو اخلاقو څخه

د مال ډېر والی له انسان څخه ظالم، متکبر، خود غرض، بخیل او بد اخلاقه جوړوي او زکات د مال د محبت شدت او ډېروالی کموي او په انسان کې د عدل، ورورګلۍ، مهربانۍ، همدردۍ، قربانۍ او احسان احساس پیدا کوي او کله چې یو مسلمان د الله تعالی په حکم زکات ورکړي، نو بې شکه ګناه یې هم ببښل کېږي.

﴿ إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ ﴾. (هود: ۱۱٤).

ژباړه: بې شکه نېکۍ، بدۍ لرې کوي.

د زکات دویمه معنی زیاتوالی دی، د زکات په ورکولو سره خو په ښکاره مال کمېږي، خو په حقیقت کې زیاتېږي. ځینې وختونه الله تعالی په ښکاره هم مال زیاتوي، خو که داسې ونه شي، نو معنوي برکت په کې ضرور اچوي، د معنوي برکت څخه مطلب د خیر او نېکمرغه کارونو زیات

توفیق ترلاسه کول دي، الله تعالی په خپلو خاصو بنده ګانو د نېکی کار خپله کوي، دوی په خپل لږ مال جوماتونه او مدرسې ابادوي او یا د هغوی په ابادولو کې مرسته کوي، د ټولنې د بې وزلو او نادارو خلکو کفالت او مرسته کوي، په داسې حال کې چې د خیر له توفیق څخه محروم خلک که هرڅومره شتمن او بډای وي، له دې فضل، نېکبختی او احسان څخه محروم پاتې وي، رسول الله صلی الله علیه وسلم په یو حدیث کې فرمایلي دي:

مَا نَقَصَتْ صَدَقَةٌ مِنْ مَالٍ، وَمَا زَادَ اللهُ عَبْدًا بِعَفْوٍ، إِلَّا عِزًّا، وَمَا تَوَاضَعَ أَحَدٌ لِلَّهِ إِلَّا رَفَعَهُ اللهُ.(۱)

ژباړه: په صدقه مال نه کمېږي، په بښنه انسان نه سپکېږي، بلکې الله تعالی یې سرلوړی کوي او هر څوک چې د الله لپاره عاجزي اختیاروي، الله یې درجه اوچتوي او سرلوړی کوي یې

**د دنیوي برکت یو ساده او عجیب مثال:**

په دنیا کې ځینې وختونه په یو ډول الله تعالی برکت نازل کړی وي او له خپلو بندګانو سره یې ځانګړې مرسته کړې وي، یو ساده مثال په یو صحیح حدیث کې بیان شوی دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي:

بَيْنَا رَجُلٌ بِفَلَاةٍ مِنَ الْأَرْضِ، فَسَمِعَ صَوْتًا فِي سَحَابَةٍ: اسْقِ حَدِيقَةَ فُلَانٍ، فَتَنَحَّى ذَلِكَ السَّحَابُ، فَأَفْرَغَ مَاءَهُ فِي حَرَّةٍ، فَإِذَا شَرْجَةٌ مِنْ تِلْكَ الشِّرَاجِ قَدِ اسْتَوْعَبَتْ ذَلِكَ الْمَاءَ كُلَّهُ، فَتَتَبَّعَ الْمَاءَ، فَإِذَا رَجُلٌ

(۱) صحیح مسلم: البر والصلة، باب استحباب العفو والتواضع، حدیث:۲۵۸۸.

قَائِمٌ فِي حَدِيقَتِهِ يُحَوِّلُ الْمَاءَ بِمِسْحَاتِهِ، فَقَالَ لَهُ: يَا عَبْدَ اللهِ مَا اسْمُكَ؟ قَالَ: فُلَانٌ لِلاسْمِ الَّذِي سَمِعَ فِي السَّحَابَةِ فَقَالَ لَهُ: يَا عَبْدَ اللهِ لِمَ تَسْأَلُنِي عَنِ اسْمِي؟ فَقَالَ: إِنِّي سَمِعْتُ صَوْتًا فِي السَّحَابِ الَّذِي هَذَا مَاؤُهُ يَقُولُ: اسْقِ حَدِيقَةَ فُلَانٍ، لِاسْمِكَ، فَمَا تَصْنَعُ فِيهَا؟ قَالَ: أَمَّا إِذْ قُلْتَ هَذَا، فَإِنِّي أَنْظُرُ إِلَى مَا يَخْرُجُ مِنْهَا، فَأَتَصَدَّقُ بِثُلُثِهِ، وَآكُلُ أَنَا وَعِيَالِي ثُلُثًا، وَأَرُدُّ فِيهَا ثُلُثَهُ.(١)

ژباړه: یو سړی له یوې پراخه دښتې څخه تېرېده، چې له اسمان څخه یې یو اواز واورېده: (ای ورېځو) د فلاني باغ ته اوبه ورکړئ، نو له ورېځو څخه یوه برخه جلا شوه او په یوه ډبرینه ځمکه یې اوبه وورولې، بیا په یوه شېله (ناو) کې د ټولو شېلو (ناونو) اوبه یوځای شوې او مخکې لاړې، د دښتې سړی له اوبو سره روان شو تر دې چې یو سړی یې ولیده، چې په خپل باغ کې ولاړ و او اوبه یې یو خوا بل خوا اړولې هغه باغوان ته ویل ای د الله تعالی بنده ستا نوم څه دی؟ هغه خپل نوم ورته ووایه، نو هغه نوم یې و، چې له ورېځې څخه یې اورېدلی و. باغوان له سړي څخه پوښتنه وکړه، چې زما د نوم پوښتنه ولې کوې؟ هغه ورته وویل: خبره داده چې له کومې ورېځې څخه ستا باغ اوبه شو، له هغې ورېځې څخه مې ستا نوم واورېده، چا اواز وکړ چې د فلاني باغ ته اوبه ورکړئ او هغه ستا هغه نوم و، کوم چې تا اوس ماته وښوده، اوس ماته ووایه چې ته کوم عمل کوې؟ باغوان وویل: ته چې له ما څخه پوښتنه کوې، نو واوره! زه چې له دې باغ څخه څومره حاصل ترلاسه کوم، درې برخې کوم یې، یوه برخه صدقه

---

(١) صحیح مسلم: الزهد، باب الانفاق، حدیث:٢٩٨٤.

کوم، بله برخه زه او زما بچي خورو او درېیمه برخه ، د فصل د تیارولو لپاره، په بل فصل کې لګوم.

**د سپینو زرو نصاب:**

خورېو ورونو!

زکات پر داسې شخص فرض کېږي، چې ورسره دوه پنځوس نیمې تولې سپین زر یا د دې په بیه نقدې روپۍ وي او یو کال پرې تېر شوی وي. علي رضي الله عنه ته رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

فَإِذَا كَانَتْ لَكَ مِائَتَا دِرْهَمٍ، وَحَالَ عَلَيْهَا الْحَوْلُ، فَفِيهَا خَمْسَةُ دَرَاهِمَ.[1]

ژباړه: که چېرې له تا سره دوه سوه درهم وي او یو کال پرې تېر شي، نو په دې کې پنځه درهمه زکات دی.

له دې حدیث مبارک څخه د سپینو زرو نصاب دوه سوه درهمه ثابت شوی چې وزن یې دوه پنځوس نیمې تولې کېږي، چې د نن سبا په حساب سره ۶۱۸ ګرام او ۱۸۲ ملي ګرام دی، په دې کې زکات څلوېښتمه برخه (دوه نیم سلنه) دی. یعنې په دوه سوه درهمه کې پنځه درهمه، چې د نن سبا په حساب سره ۱۵ ګرام او ۴۵۴ ملي ګرام کېږي (که چېرته سپین زر په زکات کې ورکوئ)، خو که چېرته زکات د سپینو زرو پرځای په نقدو روپو کې ورکوئ، نو چې څومره په دوه پنځوس نیمو تولو کې زکات وي، د هغې بیه زکات ورکړئ. دا تر ټولو کم نصاب دی، یعنې که له دې څخه کم وي، نو زکات پرې نه فرض کېږي او که له دې څخه زیات هرڅومره سپین زر وي، نو په نوموړي حساب سره زکات اداء کړئ.

---

(۱) سنن ابي داود: الزكاة، باب في زكاة السائمة، حديث:۱۵۷۳.

**د سرو زرو نصاب:**

همدارنګه پر هغه شخص، چې اووه نيمې تولې سره زر او يا له هغې زيات ولري، زکات فرض دی. له علي رضي الله عنه څخه حديث روايت دی:

وَلَيْسَ عَلَيْكَ شَيْءٌ يَعْنِي فِي الذَّهَبِ حَتَّى يَكُونَ لَكَ عِشْرُونَ دِينَارًا،وَحَالَ عَلَيْهَا الْحَوْلُ، فَفِيهَا نِصْفُ دِينَارٍ.[1]

ژباړه: او په سروزرو کې پرتاسو هېڅ نه شته، تر څو چې شل ديناره نه وي، نو کله چې شل ديناره شي او کال پرې تېر شي، نو په دې کې نيم دينار زکات دی

دا روايت حسن ابن حجر او نورو ځينو محققينو د شواهدو او متابعاتو پر بنسټ حسن ګڼلی دی، شيخ الباني هم په ارواء الغليل کې د ځينو احاديثو او اثار او د هغې شواهد بيان کړي دي، چې دا خبره ترې ثابتيږي، چې د سرو زرو د نصاب لپاره نوموړی حديث صحيح بنسټ دی.

د يو دينار وزن دی: ۴۱۲۵ ګرام

د پنځه دينارو وزن دی: ۲۱۱۲۵ ګرام

د شلو دينارو وزن دی: ۸۵ ګرام

د سروزرو نصاب دی، که د ګاڼې په شکل وي يا په بل شکل.

**د زکات د ويستلو طريقه:**

زکات په مال کې څلوېښتمه برخه ده، يعنې په شل دينارو کې نيم دينار، او په څلوېښتو دينارو کې يو دينار. بله طريقه دا ده کله چې سره زر اووه نيمو تولو ته او يا له دې زيات وي او کال پرې تېر شي، د زکات د ورکولو په وخت کې د يوې تولې سروزرو بيه معلومه کړئ او بيا د ټولو سرو زرو

(۱) سنن ابي داود: الزكاة، باب في السائمة، حديث:١٥٧٣.

ځلوېښتمه برخه ( دوه نیم سلنه یا په زرو کې پنځه ویشت روپۍ ) په حساب سره زکات اداء کړئ، د دې په واسطه به ستاسو د مال او اخلاقو پاکوالی او تزکیه وشي.

## ۲۳ - له زکات پرته نورې صدقې

خوږو ورونو!

له زکات پرته پر اړمنو او بېوزلو خلکو صدقې کول په کار دي، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

«إِنَّ فِي المَالِ لَحَقًّا سِوَى الزَّكَاة».

(جامع الترمذی، الزکاة، باب ماجاء ان فی المال حقا سوی الزکاة،حدیث:٦٥٩).

بې شکه په مال کې له زکات پرته بل حق هم شته

خوږو ورونو ! دلته په دې خبره هم غور کول په کار دي، چې د اسلام غوښتنې يوازې په زکات نه ختمېږي، بلکې د وس خاوند لپاره د الله جل جلاله په لار کې صدقې کول په کار دي، قرانکریم په ځینو ځایونو کې د زکات پر ځای یو عام لفظ انفاق هم استعمال کړی دی او د زکات او صدقې دواړو معناګانې په کې شته، د پرهېزګارو په صفاتو کې يې فرمايلي دي:

﴿ وَمِمَّا رَزَقْنَٰهُمْ يُنفِقُونَ ﴾. (البقره:۳).

ژباړه: او څه چې موږ ورکړي، له هغې خرچ کوي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد فرمایلی دی:

إِنَّ ظِلَّ الْمُؤْمِنِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ صَدَقَتُهُ.[1]

ژباړه د قیامت په ورځ به پر مؤمن د هغه د صدقې سیوری وي

همدارنګه يې فرمايلي دي:

---

(۱) مسند احمد: حدیث:۲۳۳.

وَالصَّدَقَةُ تُطْفِئُ الخَطِيئَةَ كَمَا يُطْفِئُ المَاءُ النَّارَ.[۱]

ژباړه: صدقې ګناهونه داسې ختموي، لکه څرنګه چې اوبه اور له منځه وړي.

د صدقې او خیرات کوونکو لپاره پرېښتې د برکت دعا کوي، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

مَا مِنْ يَوْمٍ يُصْبِحُ العِبَادُ فِيهِ، إِلَّا مَلَكَانِ يَنْزِلَانِ، فَيَقُولُ أَحَدُهُمَا: اللَّهُمَّ أَعْطِ مُنْفِقًا خَلَفًا، وَيَقُولُ الآخَرُ: اللَّهُمَّ أَعْطِ مُمْسِكًا تَلَفًا.[۲]

ژباړه: هر سهار دوه ملايکې له اسمان څخه راکوزېږي، له دوی څخه یوه وايي: ای الله! صدقه کوونکي ته نېکه بدله ورکړه، بله وايي: ای الله! د صدقې نه ورکوونکي مال تلف کړه.

معلومه شوه، چې له زکات ورکولو وروسته هم که چېرې یوه ديني اړتيا پېښه شوه او یا کوم اړ او بې وزله درته مخې ته راغی، نو له صدقې څخه ډډه مه کوئ، همدارنګه د اړو او بې وزلو خلکو سره بې رحمي او سخت چلن کول هم د الله تعالی په نزد لوی جرم دی.

## ۲۴- له زکات څخه په سرغړونه اخروي زورنه

خوږو ورونو!

د انسان په بدن کې د یو عمل د ارادې پیداکولو لپاره په نفسیاتي توګه دوه شیان شته، چې یو مینه او بل وېره ده. ځینې اشخاص د مینې د جذبې له امله یو عمل ته تیارېږي او ځینې له وېرې پرته د کوم کار لپاره نه متحرک کېږي، په هر حال د زکات له اعراض او سرغړونې په صورت کې

(۱) جامع الترمذي: الايمان، باب ماجاء في حرمة الصلاة، حديث: ۲۶۱۶.

(۲) صحيح البخاري: الزكاة، باب، حديث: ۱۴۴۲.

چې د انسان مال بې برکته کېږي، همدارنګه په اخرت کې هم له سخت عذاب سره مخامخ کېږي.

په دې اړه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

مَنْ آتَاهُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ مَالاً فَلَمْ يُؤَدِّ زَكَاتَهُ مُثِّلَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ شُجَاعًا أَقْرَعَ لَهُ زَبِيبَتَانِ، يُطَوَّقُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ثُمَّ يَأْخُذُ بِلِهْزِمَتَيْهِ يَعْنِي بِشِدْقَيْهِ ثُمَّ يَقُولُ: أَنَا مَالُكَ أَنَا كَنْزُكَ، ثُمَّ تَلاَ: ﴿وَ لَا يَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ بِمَآ اٰتٰهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ هُوَ خَيْرًا لَّهُمْ ؕ بَلْ هُوَ شَرٌّ لَّهُمْ ؕ سَيُطَوَّقُوْنَ مَا بَخِلُوْا بِهٖ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ﴾. (آل عمران: ۱۸۰).

ژباړه: چاته چې الله تعالی مال او دولت ورکړ، خو هغه ترې زکات ورنه کړ، نو دا مال به د قیامت په ورځ هغه ته د مار په شکل جوړ کړی شي، چې د سترګو په سر به یې دوه ټکي وي (دا دوه ټکي د سخت زهر جن مار دي)، دا مار به د هغه د غاړې کړۍ جوړه شي بیا به دا مار د دې سړي دواړه وخکي (د خولې دواړه طرفونه) راکاږي او ورته وایي به: زه ستا مال یم، زه ستا خزانه یم، له دې وروسته رسول الله صلی الله علیه وسلم د قران کریم دا ایت ولوست:

هغه خلک چې الله تعالی ورته په خپل فضل او کرم مال ورکړی وي او دا په کې بخل کوي (زکات نه ورکوي) دوی داسې نه ګڼي چې دا د دوی لپاره خیر دی، بلکې دا د دوی لپاره شر دی، هغه مال چې دوی په کې بخل کوي (او د دې زکات نه وباسي)، نو دا به د قیامت په ورځ د دوی د غاړې کړۍ جوړه شي

**د سروزرو د زکات په نه ورکولو زورونه:**

د قران کریم لاندې ایت هم د دې خلکو په اړه نازل شوی، چې د خپلو سروزرو او سپینو زرو څخه زکات نه وباسي:

﴿وَ الَّذِيْنَ يَكْنِزُوْنَ الذَّهَبَ وَ الْفِضَّةَ وَ لَا يُنْفِقُوْنَهَا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ ۝ يَّوْمَ يُحْمٰى عَلَيْهَا فِيْ نَارِ جَهَنَّمَ فَتُكْوٰى بِهَا جِبَاهُهُمْ وَ جُنُوْبُهُمْ وَ ظُهُوْرُهُمْ هٰذَا مَا كَنَزْتُمْ لِاَنْفُسِكُمْ فَذُوْقُوْا مَا كُنْتُمْ تَكْنِزُوْنَ ۝﴾.

(التوبه:۳٤-۳۵).

ژباړه: او کوم خلک چې سره زر او سپین زر د خزانې په ډول جمعه کوي او د الله په لار کې یې نه مصرفوي، نو د دردناک عذاب زیرې ورکړئ په کومه ورځ چې د ده مال د دوزخ په اور کې ګرم شي او بیا ورته په هغې باندې په تندي، اړخ او ملا داغونه ورکړل شي (او ورته وویل شي) دا ستا هغه مال دی، چې تا د ځان لپاره جمع کړی و، د خپل ذخیره شوي مال خوند وڅکه.

خو له دې څخه هغه خلک وتلي دي، چې له مال څخه زکات وباسي او صدقې او خیرات ورکوي، لکه څرنګه چې په تېر حدیث کې بیان شو.

**د زکات د نه ورکولو دنیاوي سزا:**

خوېندو ورونو!

هغه خلک چې له زکات څخه سرغړونه کوي، الله تعالی یې سربېره پر اخروي عذاب په دنیا کې د قحط، د باران د نه ورېدو او داسې نورو عذابونو سره مخامخ کوي. څرنګه چې رسول الله صلی الله عیه وسلم فرمایلي:

مَا مَنَعَ قَوْمٌ الزَّكَاةَ إِلَّا ابْتَلَاهُمُ اللهُ بِالسِّنِينَ.(۱)

ژباړه: کوم خلک چې له خپلو مالونو څخه زکات نه ورکوي، الله تعالی یې په لوږه او قحط سالۍ اخته کوي

په یو بل روایت کې دي:

وَلَمْ يَمْنَعُوا زَكَاةَ أَمْوَالِهِمْ، إِلَّا مُنِعُوا الْقَطْرَ مِنَ السَّمَاءِ، وَلَوْلَا الْبَهَائِمُ لَمْ يُمْطَرُوا.(۲)

ژباړه: هغه خلک چې له خپلو مالونو څخه زکات نه ورکوي، الله تعالی یې د باران له رحمت څخه بې برخې کوي، که چېرې حیوانات نه وای، پر دوی به هېڅکله باران نه وای شوی

## ۲۵ - سخاوت او د الله تعالی لپاره صدقه کول

زما خوږو ځوانانو ورونو!

د مال د کموالي له امله له صدقې څخه ځان مه ژغورئ، صدقه که هرڅومره کوچنۍ هم وي، خو چې یوازې د الله تعالی د خوښۍ لپاره وي، نو د مسلمان د خلاصي سبب کېږي. رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي:

اتَّقُوا النَّارَ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ.(۳)

ژباړه: صدقه وکړئ او ځان د دوزخ له اور څخه وژغورئ، که چېرې دخرما یوه برخه هم وي

کومه صدقه په اجر کې زیاته ده؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

---

(۱) صحيح الترغيب والترهيب للالباني:٤٦٧.

(۲) سنن ابن ماجه: الفتن ،باب العقوبات، حديث:٤٠١٩.

(۳) صحيح البخاري: الزكوة، باب اتقوالنار ولوبشق تمرة، حديث:١٤١٧.

أَنْ تَصَدَّقَ وَأَنْتَ صَحِيحٌ شَحِيحٌ تَخْشَى الفَقْرَ، وَتَأْمُلُ الغِنَى، وَلاَ تُمْهِلُ حَتَّى إِذَا بَلَغَتِ الحُلْقُومَ، قُلْتَ: لِفُلاَنٍ كَذَا، وَلِفُلاَنٍ كَذَا وَقَدْ كَانَ لِفُلاَنٍ.(۱)

ژباړه: د زیات اجر والا صدقه هغه ده، چې د تندرستی او ځوانی په وخت کې وشي، کله چې په انسان کې د دولت غوښتنې او د جمع کولو حرص وي او د صدقې له امله د بېوزلی وېره وي او (د مال د جمع کولو په صورت کې) د شتمنی تمه وي، داسې نه چې تاسو فکر کوئ او د اجل لاس ستاسې تر مری ورسېږي او په هغې وخت کې تاسو د مال په باره کې وصیت کوئ، چې دومره مال فلاني ته او دومره مال فلاني ته (د الله لپاره) ورکړئ، په داسې حال کې چې هغه وخت به ستا مال (ستا له اختیار څخه ووځي) د فلاني (د وارثانو) شي.

## ۲۶- صدقه په ښه او پټه توګه ورکول

خورېو وروڼو!

په صدقه او خیرات کې اخلاص ته ډېر پام وکړئ او له ریاکارۍ (ځان ښودنې) څخه ځان وژغورئ، ځکه چې په پټه صدقه کول د الله تعالی غوسه ختموي، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

وَالصَّدَقَةُ تُطْفِئُ الخَطِيئَةَ كَمَا يُطْفِئُ المَاءُ النَّارَ.(۲)

ژباړه: صدقه ګناهونه داسې له منځه وړي، لکه څرنګه چې اوبه اور له منځه وړي.

که چېرې صدقه په پټه او د زړه له کومې د الله تعالی د رضا لپاره ورکړل

(۱) صحیح مسلم: الزکاة، باب بیان ان افضل الصدقة، حدیث: ۱۰۳۲.

(۲) جامع الترمذي: الایمان، باب ماجاء فی حرمة الصلاة، حدیث: ۲۶۱۶.

شي، نو د انسان د خلاصي سبب کېداى شي، نو له دې امله صدقه بايد په پټه وکړئ، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي: اووه کسان داسې دي چې الله تعالى به يې په هغه (د قيامت) ورځ (د عرش) سيورى ور په برخه کړي، چې په هغې ورځ به له هغې (عرش د) سيوري بل سيورى نه وي له دې اووه کسانو به يو کس هغه وي:

وَرَجُلٌ تَصَدَّقَ بِصَدَقَةٍ فَأَخْفَاهَا حَتَّى لاَ تَعْلَمَ شِمَالُهُ مَا تُنْفِقُ يَمِينُهُ.(۱)

ژباړه: هغه کس چې په پټه صدقه کوي، تر دې چې چپ لاس يې خبر نه شي، چې ښي لاس څه صدقه کړل

مطلب دا چې غريب ته صدقه ورکول يا ورسره مرسته کول داسې وشي، چې له الله تعالى او له هغه کس نه غير، چې چا ته يې صدقه ورکوئ او يا ورسره مرسته کوئ، بل چاته معلومه نه شي

البته دا خبره ترې جلا ده، چې د ترغيب په توګه ښکاره صدقه وشي، چې نور خلک هم د صدقې ورکړې ته تيار شي ځينو داسې حالاتو کې له خفيه صدقې څخه ښکاره صدقه بهتره ده، خو چې ريا او ځان ښودنې جذبه په کې شامله نه وي، که چېرې ريا او ځان ښودنه په کې شامله شوه، نو ټول اعمال به برباد شي

(۱) صحيح البخاري: الزكاة، باب الصدقة باليمين، حديث:۱۴۲۳.

## ۲۷- له صدقې او خیرات وروسته احسان مه کوئ

له چاسره مو چې نېکي وکړه، صدقه، زکات او یا مرسته مو ورسره وکړه، نو بیا پرې احسان مه کوئ او مه ورسره داسې چلند کوئ چې په هغې کې یې سپکاوی کېږي او بې وزله تکلیف احساس کړي، الله تعالی په قران کریم کې فرمايي:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تُبْطِلُواْ صَدَقَٰتِكُم بِٱلْمَنِّ وَٱلْأَذَىٰ ﴾. (البقره:۲٦٤).

ژباړه: ای مومنانو! خپلې صدقې په احسان کولو او تکلیف ورکولو مه ضایع (برباد) کوئ.

- خوږو ورونو!

له دې معلومه شوه، چې په احسان کولو او تکلف ورکولو صدقه ضایع او بې اجره کېږي، په اړه یې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي:

ثَلَاثَةٌ لَا يُكَلِّمُهُمُ اللهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، وَلَا يَنْظُرُ إِلَيْهِمْ وَلَا يُزَكِّيهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ، قَالَ: فَقَرَأَهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَ مِرَارٍ، قَالَ أَبُو ذَرٍّ: خَابُوا وَخَسِرُوا، مَنْ هُمْ يَا رَسُولَ اللهِ؟ قَالَ: الْمُسْبِلُ ازاره، وَالْمَنَّانُ، وَالْمُنَفِّقُ سِلْعَتَهُ بِالْحَلِفِ الْكَاذِبِ.[1]

ژباړه: الله به د قیامت په ورځ له دریو کسانو سره خبرې نه کوي، نه به ورته ګوري او نه به یې (له ګناه څخه) پاک کړي او د دوی لپاره دردناک عذاب دی، رسول الله درې ځلې دا وفرمایل: نو د حدیث راوي ابوذر وویل: دا خلک ناکام او تاوان یې وکړ، د الله رسوله! دا کوم خلک دي؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: یوه هغه کس چې لباس یې له ښنګرو څخه

(۱) صحیح مسلم: الایمان، حدیث:۱۰٦.

ښکته وي، دویم هغه کس چې له چا سره احسان وکړي او بیا خپل احسان پرې زیاتي (وریادوي یې او په هغه ورته تکلیف او پیغور ورکوي)، دریيم هغه کس چې په دروغجنو قسمونو خپله سودا خرڅوي.

زما خوږو ورونو!

په عام ډول خلک له نوموړو خبرو پروا نه کوي، نو ځکه هغه په سپینه جامه کې بې وزله او ناچاره خلک د دې وړې خپل، خپلوانو، شتمنو او مالدارو خلکو ته لاس نه اوږدوي، چې سبا یې ورباندې زیاتي، تکلیف به ورته پرې ورکوي او ددوی عزت ته پرې زیان رسوي.

## ۲۸- د روژې مبارکې ځانګړتیاوې او فضیلتونه

خوږو ځوانانو!

الله تعالی د رمضان د میاشتې درجه پر نورو میاشتو د ځینو ځانګړتیاووا او فضیلتونو له امله لوړه کړې ده، لکه په لاندې مبارک ایت کې چې الله تعالی فرمایلي:

﴿شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِيٓ أُنْزِلَ فِيهِ الْقُرْاٰنُ﴾. (البقره:۱۸۵).

ژباړه: د روژې میاشت هغه میاشت ده چې قران په کې نازل شوی دی.

د دې میاشتو په اخري لسو طاقو شپو کې لیلة القدر (د قدر) شپه وي، چې د هغې شپې عبادت د زرو میاشتو له عبادت څخه غوره دی:

﴿لَيْلَةُ الْقَدْرِ ۙ خَيْرٌ مِّنْ أَلْفِ شَهْرٍ ۝﴾. (القدر:۳).

ژباړه: د قدر شپه له زرو میاشتو څخه غوره ده.

زر میاشتې ۸۳ کاله او ۴ میاشتې کیږي، په عام ډول یو انسان دومره عمر نه لري، نو الله تعالی پر انسانانو څومره احسان کړی دی، چې دومره د فضیلت والا میاشت یې ور په برخه کړې ده.

وَلِلّٰهِ عُتَقَاءُ مِنَ النَّارِ، وَذٰلِكَ كُلُّ لَيْلَةٍ.[١]

ژباړه: د روژې په هره شپه الله تعالى خپلو بندګانو ته له جهنم څخه ازادي وركوي.

إِذَا دَخَلَ شَهْرُ رَمَضَانَ فُتِّحَتْ أَبْوَابُ السَّمَاءِ، وَغُلِّقَتْ أَبْوَابُ جَهَنَّمَ، وَسُلْسِلَتِ الشَّيَاطِينُ.[٢]

ژباړه: د روژې په راتلو د جنت دروازې ېېرته شي او د جهنم دروازې بندې شي او (غټ ـ غټ سركش) شيطانان وتړل شي.

قَالَ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ: إِلَّا الصَّومَ فَإِنَّهُ لِي، وَأَنَا أَجْزِي بِهِ، يَدَعُ شَهْوَتَهُ وَطَعَامَهُ (وَشَرَابَهُ) مِنْ أَجْلِي،لِلصَّائِمِ فَرْحَتَانِ: فَرْحَةٌ عِنْدَ فِطْرِهِ، وَفَرْحَةٌ عِنْدَ لِقَاءِ رَبِّهِ. وَلَخُلُوفُ فَمِ الصَّائِمِ أَطْيَبُ عِنْدَ اللّٰهِ مِنْ رِيحِ الْمِسْكِ.[٣]

ژباړه: د روژې په اړه الله فرمايي: دا عمل يوازې زما لپاره دی، نو ځكه د دې بدله به زه وركوم (ځكه) روژه نيونكي يوازې زما لپاره خپل جنسي خواهش او خوراك، څښاك پرېږدي. روژه نيونكي لپاره دوه خوشحالۍ دي، يوه خوشحالي د روژه ماتې پر وخت او دويمه هغه وخت، چې كله له الله تعالى سره مخامخ شي او د روژه نيونكي د خولې بوی د الله تعالى په نزد د مشكو له بوی څخه غوره دی.

(١) جامع الترمذي: الصوم، حديث:٦٨٢.

(٢) صحيح البخاري: الصوم، حديث:١٨٩٨.

(٣) صحيح البخاري: الصوم، حديث:١٨٩٤.

مَنْ صَامَ رَمَضَانَ، إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا، غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ.[۱]

ژباړه: چا چې د روژې د میاشتې روژې له ایمان او د ثواب په نیت (اخلاص) ونیوې د هغه مخکېني ګناهونه به وبښل شي.

## مور، د روژې د میاشتې استقبال څنګه وکړو؟

خوږو ورونو!

دا د روژې د میاشتې ځینې خوصیات او فضیلتونه وو، اوس باید مونږ فکر وکړو چې د روژې د میاشتې استقبال څنګه وکړو؟ ایا داسې استقبال یې وکړو لکه څرنګه چې د نورو میاشتو استقبال په ګناهونو او د الله تعالی په نافرمانیو کوو؟ او یا په داسې ډول چې د دې میاشتې له فضایلو څخه برخمن شو او د جنت د ننوتلو او له دوزخ څخه د خلاصي وړ وګرځو؟.

نو د دې اخري دوو پوښتنو د مثبت ځواب لپاره باید په لاندې خبرو غور وکړو:

### له خپل نفس سره حساب:

د روژې په راتلو خپل ټول حساب کتاب پاک کړئ او د خپلو ګناهونو بښنه وغواړئ او له نورو څخه توبه وباسئ او د تل لپاره یې پرېږدئ. چا چې د مور او پلار نافرماني کړې وي، هغوی دې پخلا کړي، چا چې سندرې اورېدې، نو له هغې څخه دې توبه وباسي او ځان دې د الله تعالی د کتاب اورېدو ته چمتو کړي، هغه څوک چې سود خوري، سود دې پرېږدي او هغه څه دې خوري، چې په حلاله ګټه تر لاسه شوي وي، په همدې ډول په هر مسلمان دا لازمه ده، چې د روژې له پیل څخه مخکې مخکې خپل حساب پاک کړي.

---

(۱) صحیح البخاري: الصوم، حدیث ۱۹۰۱.

## پلان :

د ټولې میاشتې لپاره پلان تیار کړئ، لکه څرنګه چې یو تجار د ګټې فصل ته پلان جوړوي او د زیاتې ګټې کوښښ کوي. بلکل په داسې توګه لکه یو نېک بنده چې د روژې استقبال کوي او د غفلت پردې له خپلې مخې لرې کوي او د استغفار او توبې سره دا عزم او اراده وکړي چې که چېرې الله تعالی یو ځل بیا د دې میاشتې نېکبختی، او فضیلتونه موږ ته راکړل، نو موږ به دا موقع غنیمت وګڼو او دا فضلیتونه به حاصل کړو او خپل وخت به د الله په عبادت او نېکو اعمالو په ځای کولو او د ډېرو نېکیو په ترلاسه کولو کې تېروو.

## د دعاګانو پابندي :

د روژې په میاشت کې دعاګانې ډېرې کوئ، ترڅو الله تعالی تاسو ته لمونځ روژه، صدقه، تراویح، نوافل او نور داسې کارونه اسانه کړي او د الله تعالی د رضا سبب وګرځي، همدارنګه دا دعاء هم کوئ، چې ای الله تعالی موږ د هغه عمل څخه وژغورې، چې روژې ته زیان رسېږي، ځکه چې دعاء لوی عبادت دی، دعاء هم کوئ او له دې اعمالو څخه د ځان ساتنې کوښښ هم. سربېره پر دې خپل ځانونه معلوم کړئ چې ایا ستاسو د ایمانونو څرنګوالی د سلفو صالحینو د ایمان په شان دی ؟ هغوی شپږ میاشتې د روژې د ملاقات او پاتې شپږ میاشتې د اعمالو د قبلېدو دعاء اوزارئ کولې.

## ۲۹- د ورځې روژه او د شپې قیام

خوږو ځوانانو ورونو!

د روژې مبارکه میاشت د سستۍ او خوبونو میاشت نه ده، بلکې د ورځې د روژې او د شپې د قیام (لمونځونو) میاشت ده.

له ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

إِذَا جَاءَ رَمَضَانُ فُتِّحَتْ أَبْوَابُ الجنة، وَغُلِّقَتْ أَبْوَابُ النارِ، وَصُفِدَتِ الشَّيَاطِينُ.[1]

ژباړه: کله چې د روژې میاشت راشي، نو د جنت دروازې بېرته شي د دوزخ دروازې بندې شي او شیطانان وتړل شي.

دا د روژې د میاشتې فضیلت دی، چې د ایمان والا په کې الله تعالی ته زیاته رجوع کوي او د قران د تلاوت او د نورو نېکو اعمالو ډېره پابندي کوي.

## ۳۰- له لاندې ذکر شوو شیانو څخه ځان ژغورنه

خوږو ورونو!

الله تعالی دې پر تاسو رحم وکړي، په دې ځان پوه کړئ، چې د روژه نیونکي لپاره د لاندې ذکر شوو شیانو څخه ډېر زیات ځان ساتل ضروري دي:

(۱) صحیح البخاري: الصوم،حدیث:۱۸۹۹.

## له دروغو:

د رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد دی:

مَنْ لَمْ يَدَعْ قَوْلَ الزُّورِ وَالعَمَلَ بِهِ، فَلَيْسَ لِلَّهِ حَاجَةٌ فِي أَنْ يَدَعَ طَعَامَهُ وَشَرَابَهُ.[١]

ژباړه: هغه څا چې دروغ ویل او پر دروغو عمل پرېنښود، نو د الله تعالی ورته هېڅ ضرورت نه شته، چې داسې کس خوراک او څښاک پرېږدي، یعنې د الله تعالی په نزد د داسې روژې هېڅ ارزښت نه شته

دروغ او پر دروغو د عمل کولوڅخه ځان ساتلو مطلب دا دی، چې په روژه کې نه دروغ خبره وکړی شي او نه په دروغو او دوکو باندې کوم عمل، لکه په دوکان کې کېناستل او پېرودنکو ته دروغ ویل، په دوکه مال خرڅول او د دې کوشش کول له بده مرغه ډېر دوکانداران د دې ګناه مرتکب کېږي دا عمل هر وخت منع دی، خو د روژې په وخت کې ډېر لوی زیان او د روژې بې احترامي ده.

یوازې لوږه او تنده بسنه نه کوي:

د داسې خلکو په اړه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

كَمْ مِنْ صَائِمٍ لَيْسَ لَهُ مِنْ صِيَامِهِ إِلَّا الظَّمَأُ، وكَمْ مِنْ قَائِمٍ لَيْسَ لَهُ مِنْ قِيَامِهِ إِلَّا السَّهَرُ.[٢]

څومره روژه نیونکي دي چې له تندې پرته ورته له روژې هېڅ په لاس نه راځي او څومره شپه ړنونکي خلک دي چې له بې خوبۍ پرته هېڅ نه ترلاسه کوي

---

(١) صحيح البخاري: الصوم، حديث:١٩٠٣.

(٢) مسند احمد: حديث:٤٤١.

**لغو او رفث:**

**نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي:**

لَيْسَ الصِّيَامُ مِنَ الْأَكْلِ وَالشُّرْبِ، وَإِنَّمَا الصِّيَامُ مِنَ اللَّغْوِ وَالرَّفَثِ.(١)

ژباړه: روژه یوازې له خوړلو او څښلو منع نه ده، بلکې روژه له لغو او رفث څخه ده

**لغو:**

هر بې ګټې کار ته لغو وايي، لکه ریډیو، ټي وي، تاش، شطرنج اوداسې نورې لوبې، عیاش ناولونه کتل، افسانې، ډرامې، له ملګرو سره ګپ شپ، ټوکې او داسې نور.

**رفث:**

پر جنسي خواهشاتو ولاړې خبرې او حرکتونه دي، دا لغو او رفث د روژې په حالت کې په ځانګړي ډول منع دي، نو له دې امله ضروري ده، چې له هر لغو او قبایحو، بدو خبرو پرهېز او نېک کارونه خپل کړو.

## ۳۱- د جاهلانو په مقابل کې له صبر څخه کار اخیستل

خوږو ورونو!

لکه څرنګه چې د روژه نیونکي لپاره خوراک، څښاک او له مېرمنې سره کوروالی منع دی، همدارنګه د خپلې ژبې او نورو اعضاو ساتنه هم ضروري ده.

له ابوهریرة رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

إِذَا كَانَ يَوْمُ صَوْمِ أَحَدِكُمْ، فَلَا يَرْفُثْ، وَلَا يَصْخَبْ فَإِنْ سَابَّهُ أَحَدٌ

---

(١) صحیح ابن خزیمه:٣:٢٤٢.

أَوْ قَاتَلَهُ فَلْيَقُلْ إِنِّي صَائِمٌ [1]

ژباړه: کله چې له تاسو څخه د کوم يو روژه وي، نو نه به عياشي خبرې کوي او نه به شور او زوږ کوي، نو که چا ورته کنځلې وکړې او جنګ يې ورسره وکړ، نو ورته دې ووايي: چې زه روژه يم

نو له دې څخه معلومه شوه، که چېرې د روژې په حالت کې څوک له تاسو سره جنګ وکړي او يا درته کنځلې وکړي، نو په مقابل کې يې ته له عفوې او ښېګڼې څخه کار واخله او په ياد لره، چې زه روژه يم. او ما ته له دې شيانو ډډه په کار ده او څومره چې کېدای شي خپله ژبه په تلاوت او ذکر مشغوله وساتئ او نورو ته هم بايد دا وصيت وکړئ، چې د روژې په حالت کې له جنګ، کنځلو ځان وژغوري او له صبر او زغم څخه کار واخلي.

## ۳۲ - قيام الليل

زما خوږو ځوانانو ورونو!

د روژې په خاصو اعمالو او وظايفو کې بل عمل قيام الليل (د شپې د الله عبادت او له الله تعالى څخه ښېګڼه او عاجزي) دی. په قران کريم کې چې الله تعالى د عباد الرحمن (د رحمن بندګانو) کوم صفات بيان کړي، په هغوی کې يو دا هم دی:

﴿وَالَّذِيْنَ يَبِيْتُوْنَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا وَّقِيَامًا﴾. (الفرقان:٦٤).

ژباړه: او د دوی شپې الله تعالى ته په قيام او سجدو تېرېږي.

او رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي:

مَنْ قَامَ رَمَضَانَ إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا، غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ [2]

---

(۱) صحيح البخاري، الصوم، حديث: ۱۹۰٤.

(۲) بخاري.

ځا چې په روژه کې قیام وکړ، د ایمان په حالت کې او د ثواب په نیت، نو مخکني ګناهونه به یې وبښل شي

**د قیام شمېر:**

د شپې قیام د رسول الله صلی الله علیه وسلم مستقل عادت و، له عایشې رضي الله عنها څخه وپوښتل شو، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په روژه کې (د شپې) څو رکعته لمونځ کاوه؟، نو هغې ځواب ورکړ:

مَا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَزِيدُ فِي رَمَضَانَ وَلاَ فِي غَيْرِهِ عَلَى إِحْدَى عَشْرَةَ رَكْعَةً. (۱)

ژباړه: رسول الله صلی الله علیه وسلم (د شپې) له یوولسو رکعتونو زیات لمونځ نه دی کړی، که د روژې میاشت به وه او که بله.

او همدارنګه صحابه کرامو هم د دې خاصه پابندي کوله او د هر دور د اهل علمو او پرهېزګارانو همدا نښه ده او په ځانګړې توګه په روژه کې د دې خاص فضیلت دی.

**د شپې درېیمه برخه:**

د شپې درېیمه برخه ځکه ارزښت لري، چې په دې وخت کې الله تعالی د لومړي اسمان ته خپل شان سره سم راکوزېږي او د دنیا خلکو ته داسې خطاب فرمایي:

مَنْ يَدْعُونِي، فَأَسْتَجِيبَ لَهُ؟ مَنْ يَسْأَلُنِي فَأُعْطِيَهُ؟ مَنْ يَسْتَغْفِرُنِي فَأَغْفِرَ لَهُ؟. (۲)

ژباړه: څوک دی، چې له ما څخه دعا طلب کړي او زه یې دعا قبوله کړم؟

---

(۱) صحیح البخاري: التهجد، حدیث: ۱۱۴۷.

(۲) صحیح البخاري: التهجد، حدیث: ۱۱۴۵.

څوک دی چې له ما څخه وغواړي او زه یې ورکړم ؟ څوک دی، چې له ما څخه بښنه څه وغواړي او زه ورته بښنه وکړم ؟

**تېزوالی مقصد نه دی، بلکې تدبر او فکر مهم دی:**

سرېېره پردې تراویح نفلي لمونځ دی او یو مؤمن چې نفلي لمونځ اداء کوي، نو هدف یې د الله رضا او خوښي او الله ته نږدې والی وي. خو لکه په زیاتو جوماتونو کې چې په تراوېحو کې څنګه قران لوستل کېږي او په څومره تېزوالي سره رکوع، سجده او قومه کېږي. ایا په داسې لمانځه مسلمان الله تعالی ته نږدې کېدای شي؟

نه هیڅکله نه ! په تېزۍ او تندۍ باندې د قران کریم اعجاز. فصاحت او بلاغت له منځه ځي او د لمانځه ټول روح خرابېږي، نو ایا دوی به د اجر او ثواب د تر لاسه کولو امید او تمه لري ؟ او دا به وایي چې موږ به الله تعالی ته نږدې شو او د هغه د دوستۍ مستحق به شو ؟

دا سراسر دوکه، نفسي فرېب، د شیطان غولول او وسوسه ده او زموږ جهالت او ناپوهي ده.

که چیرې موږ وغواړو، چې د قیام اللیل هغه فضیلت موږ ترلاسه کړو، چې موږ ته یې رسول الله صلی الله علیه وسلم بیان کړی دی:

چاچې په ایمان او په اخلاص د روژې د میاشتې ( په شپو کې ) قیام وکړ، د ده مخکېني ګناهونه به وبښل شي

نو د دې لپاره ضروري دي، چې قران کریم په تجوید او ترتیل سره ولوستل شي او د لمانځه ارکان برابر کړل شي، لکه څرنګه چې په دې دواړو تاکید شوی او پرته له دې د قران مجید لوستل او د تراوېحو کول بې ارزښته دي

داسې خو ټوله د روژې میاشت د نېکیو، عباداتو او د طاعت خصوصي

میاشت ده، خو اخري لس ورځې د دې فصل د عروج او د زیات اجر ټکی دی.

## ۳۳- د روژې د میاشتې په اخري لسو ورځو کې ډېرې نېکۍ کول

رسول الله صلی الله علیه وسلم په دې لسو ورځو کې خپله هم نېکیو ته ملا تړله او کور والاو ته یې هم امر کاوه، عایشه رضي الله عنها فرمایي:

إِذَا دَخَلَ الْعَشْرُ، أَحْيَا اللَّيْلَ، وَأَيْقَظَ أَهْلَهُ، وَشَدَّ الْمِئْزَرَ.[1]

ژباړه: کله به چې (د روژې د میاشتې اخري) لس ورځې شروع شوې، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم به د شپې شبګیر کاوه او خپل کور والا به یې هم ویښول (او عبادت ته به یې ملا تړله)

په یو بل روایت کې عایشه رضي الله عنها فرمایي:

كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْتَهِدُ فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ، مَا لَا يَجْتَهِدُ فِي غَيْرِهِ.[2]

ژباړه: رسول الله صلی الله علیه وسلم به چې په اخري لسو ورځو کې څومره کوښښ او محنت کاوه، په نورو کې یې دومره نه کاوه

له دې محنت او کوښښ څخه هدف د عبادت او ذکر محنت دی، نو ځکه خوړو ورونو!

د رسول الله په اقتداء په دې لسو ورځو شپو کې ډېر محنت او کوښښ کول په کار دي د دې لپاره چې الله تعالی له موږ څخه راضي شي.

---

(۱) صحیح البخاري، حدیث: ۲۰۲٤.

(۲) صحیح مسلم، الاعتکاف، حدیث: ۱۱۷۵.

## د اعتکاف مشروعیت:

همدا لامل دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په دې لسو ورځو کې اعتکاف ته ځانګړې پاملرنه کوله، شپه او ورځ به د جومات په کنج کې ناست و او دنیوي کارونه او اړیکې یې پرېښې وې

عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرمايي:

كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْتَكِفُ العَشْرَ الأَوَاخِرَ مِنْ رَمَضَانَ.[1]

ژباړه: رسول الله صلی الله علیه وسلم به د روژې د میاشتې په (اخري) لسو ورځو کې اعتکاف کاوه

همدارنګه ابو هریره رضي الله عنه فرمايي:

انَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْتَكِفُ فِي كُلِّ رَمَضَانَ عَشَرَةَ أَيَّامٍ، فَلَمَّا كَانَ العَامُ الَّذِي قُبِضَ فِيهِ اعْتَكَفَ عِشْرِينَ يَوْمًا.[2]

ژباړه: رسول الله صلی الله علیه وسلم به هره روژه لس ورځې اعتکاف فرمایه، خو په کوم کال چې وفات شو په دې کال یې شل ورځې اعتکاف وفرمایه

## د اعتکاف حقیقت:

خوږو ورونو!

د اعتکاف معنی یوازې کېناستل دي. په دې عبادت کې انسان له هر چا څخه لرې د الله تعالی په کور کې یوازې کېني او ټوله توجه او پام یې دې ته وي چې الله تعالی ترې راضي شي، په دې یوازې کېناستو کې توبه او

---

(۱) صحيح البخاري: الاعتكاف، حديث: ۲۰۲۵.

(۲) صحيح البخاري: الاعتكاف، حديث ۲۰٤٤.

استغفار کوي، نوافل کوي، ذکر، تلاوت او دعا کوي او دا ټول کارونه عبادت دی، په دې اعتبار اعتکاف د عباداتو مجموعه ده.

**د اعتکاف ضروري مسایل:**

زما ګرانو ورونو!

د اعتکاف پر وخت د اعتکاف ضروري مسایل هم پېژندل په کار دي:

۱- د اعتکاف شروع د روژې له شلم ماښام څخه کېږي، معتکف (اعتکاف کوونکی) باید له لمر پرېوتو څخه مخکې جومات ته راشي او د سهار لمونځ اداء کړي او په اعتکاف کې داخل شي.

۲- معتکف ته له اړتیا پرته له جومات څخه د وتلو اجازه نه شته.

۳- د ناروغ د پوښتنې، په جنازه کې شرکت او په داسې نورو ټولنېزو کارونو کې ورته د برخې اخیستلو اجازه نه شته.

۴- البته ښځه ورسره لیدلی شي، د خاوند په وېښتو کې ږمنځ وهلی شي، خاوند یې هم، که چېرته مېرمن یې یوازې وي، کور ته تلی شي، همدارنګه که انتظام نه وي او کور یې نږدې وي، نو د ژوند د اړتیاوو لپاره کورته تلی شي.

۵- د غسل کولو او د کټ استعمالولو اجازه هم شته.

۶- اعتکاف دې په جامع جومات کې وشي، چې د جمعې لمونځ په کې کېږي.

**ښځې هم اعتکاف کولی شي:**

ښځې هم اعتکاف ته کېناستی شي، خو د هغوی لپاره جوماتونه دي، نه کور لکه څرنګه چې په ځینو مذهبي حلقو کې اعتکاف ته د کېناستلو لره شته. د رسول الله صلی الله علیه وسلم پاکې مېرمنې هم اعتکاف ته کېناستې او خېمې به یې ورته په نبوي جومات کې لګولې، لکه څرنګه

چې په بخاري شریف کې موجود دي او د قران کریم دا ایت هم دی:

﴿ وَ اَنۡتُمۡ عٰکِفُوۡنَ ۙ فِی الۡمَسٰجِدِ ﴾ .(البقره:۱۸۷).

ژباړه: کله چې تاسې په جوماتونو کې ځیله یاست.

د ښځو په کورونو کې اعتکاف بې بنسټه او د قران او حدیث خلاف دی لکه څرنګه چې اعتکاف نفلي عبادت دی، نو پر همدې اساس ترڅو چې په جومات کې د ښځو لپاره جلا ځای نه وي، چې د سړو تګ راتګ پرې نه وي، نو تر هغې ښځو ته په جومات کې کېناستل نه دي په کار.

تر څو پورې چې په یو جومات کې د ښځو ابرو او عزت خوندي نه وي، تر هغې یې اعتکاف ته کېناستل مناسب نه دي، ځکه چې اعتکاف نفلي عبادت دی او عزت ساتل فرض دي، د نفلو په ساتلو کې له فرضو بې پروایي نه ده په کار.

## ۳۴- له زرو میاشتو غوره شپه

زما خوږو خوانانو ورونو!

د الله تعالی په فضل او کرم په روژه کې لیلة القدر (د قدر شپه) وي، چې په اړه یې الله تعالی فرمايي:

﴿ لَیۡلَۃُ الۡقَدۡرِ ۬ۙ خَیۡرٌ مِّنۡ اَلۡفِ شَہۡرٍ ؕ﴾ . (القدر:۳).

ژباړه: د قدر شپه له زرو میاشتو غوره ده.

له زرو میاشتو (۸۳) کاله او (۴) میاشتې جوړېږي، په عام ډول د انسان عمر له دې څخه کم وي، مګر د محمد صلی الله علیه وسلم په امت د الله تعالی څومره مهرباني ده، چې په کال کې یې یو ځل له لیلة القدر څخه برخمن کوي، چې په کې یې عبادت له (۸۳) کالو څخه زیات اجر او ثواب لري.

امام مالک فرمایي:

أَنَّهُ سَمِعَ مَنْ يَثِقُ بِهِ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ يَقُولُ: إِنَّ رَسُولَ الله صلى الله عليه وسلم أُرِيَ أَعْمَارَ النَّاسِ قَبْلَهُ. أَوْ مَا شَاءَ اللهُ مِنْ ذلِكَ. فَكَأَنَّهُ تَقَاصَرَ أَعْمَارَ أُمَّتِه أَنْ لاَ يَبْلُغُوا مِنَ الْعَمَلِ، مِثْلَ الَّذِي بَلَغَ غَيْرُهُمْ فِي طُولِ الْعُمْرِ، فَأَعْطَاهُ اللهُ لَيْلَةَ الْقَدْرِ، خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ شَهْرٍ.[1]

ژباړه: هغه له ځینو معتمدو علماوو څخه اورېدلي وو چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د مخکېنیو خلکو عمرونه وښودل شو، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ته محسوسه شوه، چې د امت عمرونه یې کم دي او د دې کم عمر له امله به یې امت له هغو څخه په عملونو کې وروسته وي، نو الله تعالی محمدي امت ته د قدر شپه وبښله، چې له زرو میاشتو څخه غوره ده

د قدر د شپې نه موندونکی محروم:

څوک چې له دې شپې څخه محروم شو، هغه لوی بد قسمته دی، یو ځلې رسول الله صلی الله علیه وسلم د روژې په پیل کې وفرمایل:

إِنَّ هَذَا الشَّهْرَ قَدْ حَضَرَكُمْ، وَفِيهِ لَيْلَةٌ خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ شَهْرٍ، مَنْ حُرِمَهَا فَقَدْ حُرِمَ الْخَيْرَ كُلَّهُ، وَلَا يُحْرَمُ خَيْرَهَا إِلَّا مَحْرُومٌ.[2]

ژباړه: دا مبارکه میاشت تاسو ته راغله په دې کې یوه شپه ده چې له زرو میاشتو غوره ده، څوک چې له دې څخه محروم شو، هغه له هر خیر څخه محروم شو او د دې له خیر څخه هغه څوک محروم وي، څوک چې بلکل

---

(۱) مؤطاء امام مالک: الاعتکاف، حدیث: ۳۲۱.

(۲) سنن ابن ماجه، الصیام، حدیث: ١٦٤٤.

محروم وي

**د قدر شپه کومه ده:**

**خوږو ورونو!**

د روژې په اخري لسو شپو کې چې کومې طاق شپې دي، (یوویشتمه، درویشتمه، پنځه ویشتمه، اووه ویشتمه او نهه ویشتمه) په دې کې یوه شپه د قدر وي.

**د قدر د شپې د نه معلومېدو سبب:**

د دې په پټ ساتلو کې دا حکمت دی، چې یو مؤمن د دې فضیلت د حاصلولو لپاره پنځه پنځه شپې ښه ډېر عبادت وکړي که چېرې دا شپه معلومه وای، نو خلکو به یوازې په هغه شپه قیام کولی. ځیني علماء وایي، چې په متعین ډول دا اووه ویشتمه شپه ده، خو دا سمه نه ده، ځکه چې په احادیثو کې د دې د تعین او ټاکلو تائید نه دی راغلی.

**د قدر د شپې د قیام ثواب:**

رسول الله صلی الله علیه وسلم د دې شپې د فضیلت بیان فرمایلی دی:

مَنْ قَامَ لَيْلَةَ الْقَدْرِ إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا، غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ.(۱)

ژباړه: چا چې په روژه کې قیام وکړ، د ایمان په حالت کې او د ثواب په نیت، نو مخکېني ګناهونه به یې وبښل شي

**د ليلة القدر پلټنه:**

همدارنګه رسول الله صلی الله علیه وسلم د دې د لټولو تاکید هم فرمایلی، فرمایلي یې دي:

إِنِّي أُرِيتُ لَيْلَةَ الْقَدْرِ، وَإِنِّي نَسِيتُهَا أَوْ أُنْسِيتُهَا، فَالْتَمِسُوهَا فِي

---

(۱) صحیح البخاري: حدیث:۲۰۱٤.

الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ مِنْ كُلِّ وِتْرٍ.[۱]

ژباړه: ماته د قدر شپه وښودل شوه، خو (اوس) له ما څخه هېره شوه (یا یې له ما څخه هېره کړه)، نو تاسو یې د روژې د میاشتې په اخرو لسو طاقو کې ولټوئ.

یعنې په دې طاقو شپو کې د الله ښه عبادت وکړئ، ترڅو د قدر د شپې فضیلت ترلاسه کړئ، نو د دې لپاره دې سړی خپله هم عباداتو ته ملا وتړي او کور والاو ته دې هم حکم وکړي، لکه څرنګه چې عایشه رضي الله عنها فرمایي:

كَانَ رَسُوْلَ اللهِ صَلى اللهُ عَلَيْهَ وَسَلَّم إِذَا دَخَلَ الْعَشْرُ، أَحْيَا اللَّيْلَ، وَأَيْقَظَ أَهْلَهُ، وَجَدَّ وَشَدَّ الْمِئْزَرَ.[۲]

ژباړه: کله به چې (د روژې د میاشتې اخري) لس ورځې شروع شوې، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم به د شپې شبګیر کاوه او خپل کور والا به یې هم ویښول (او عبادت ته به یې ملا تړله)

**د لیلة القدر یو څو نښې:**

د لیلة القدر شپه په اسانۍ سره تېرېدونکې شپه ده، نه په کې ګرمي وي او نه په کې یخني، کله چې سهار لمر راخېژي، نو سوروالی یې کم وي، همدارنګه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي:

صَبِيحَةَ لَيْلَةِ الْقَدْرِ تَطْلُعُ الشَّمْسُ لَا شُعَاعَ لَهَا، كَأَنَّهَا طَسْتٌ حَتَّى تَرْتَفِعَ.[۳]

---

(۱) مسلم.

(۲) صحیح مسلم: الصیام،حدیث:۱۱۶۷.

(۳) صحیح مسلم: لاصلاة المسافرین، حدیث:۷۶۲.

ژباړه: د قدر دشپې په سهار د لمر راختلو پورې وړانګې نه لري، داسې وي لکه د طشت.

**د لیلة القدر ځانګړې دعاء:**

په دې شپه له الله تعالی څخه باید د ګناهونو ببښنه وغوښتل شي، عایشه رضي الله عنها فرمایي، چې ما وویل:

أَرَأَيْتَ إِنْ عَلِمْتُ أَيُّ لَيْلَةٍ لَيْلَةُ الْقَدْرِ مَا أَقُولُ فِيهَا؟ قَالَ: قُولِي: اللَّهُمَّ إِنَّكَ عُفُوٌّ تُحِبُّ الْعَفْوَ فَاعْفُ عَنِّي.[۱]

ژباړه: ای د الله رسوله! وواياست، که زه چېرې پوهه شوم، چې کومه شپه د قدر ده، نو په کې څه ووایم؟ رسول الله وفرمایل: ته دا دعا ولوله: ای الله بې شکه ته ډېر ببښونکی یې او ببښل خوښوې، نو ته ما وببښې.

## ۳۵- د تلاوت زیاتوالی

خوږو ورونو!

لکه څرنګه چې د قران کریم نزول په روژه مبارکه کې شوی دی.

﴿شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِيٓ أُنزِلَ فِيهِ الْقُرْآنُ﴾. (البقره:۱۸۵).

ژباړه: رمضان هغه میاشت ده چې په هغې کې قران نازل کړای شو

نو له دې امله له روژې سره د قران کریم ژوره اړیکه ده، همدا لامل دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم او جبرائیل علیه السلام به په خپل منځ کې یو بل ته قران کریم لوسته (لکه څرنګه چې دوه حافظان یو بل ته خپل حفظ لولي).

عبدالله بن عباس رضي الله عنهما فرمایي

---

(۱) جامع الترمذي: الدعوات، حدیث:۳۵۱۳.

كَانَ جِبْرِيلُ يَلْقَاهُ فِي كُلِّ لَيْلَةٍ مِنْ رَمَضَانَ، فَيُدَارِسُهُ الْقُرْآنَ.[1]

ژباړه: جبرائیل علیه السلام به د روژې په هره شپه له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره یوځای کېده او قران به یې درس کاوه.

**د قران په تلاوت کې وېره:**

ځکه نو تاسو هم باید ډېر تلاوت وکړئ، د قران کریم تلاوت په غور او فکر سره وکړئ، په معنی او مطلب یې ځان پوه کړئ، ترڅو چې د قران په تلاوت کې وېره او ژړا پیدا شي، د الله تعالی لوړتیا او شان په خپل ذهن او زړه کې خوندي وساتئ. سربېره پر دې قران کریم باید یوازې د تاریخ او کیسو کتاب ونه ګڼل شي، بلکې د هدایت د حاصلولو لپاره ولوستل شي.

د زورنې، وعید، وېرې او زېرې پر ایتونو باید غور او فکر وشي.

په کوم ځای کې چې د الله تعالی د رحمت او مغفرت زېری او د نعمتونو بیان وي، هلته باید له الله تعالی څخه د هغې سوال وکړ شي او په کوم ځای کې چې وېره او زورنه ورکړل شوې وي، له هغې څخه پناه وغوښتل شي.

زموږ سلفو په داسې غور او تدبر سره قران کریم لوسته، چې په کوم ځای کې به دې ته ورته ایتونه مخې ته راغلل، نو داسې نرمي به پرې راغله، چې بیا بیا به یې ایتونه تکرارول. خپله رسول الله صلی الله علیه وسلم به قران کریم داسې په فکر او تدبر سره لوسته او له دې څخه به اغېزمن کېده، چې په کومو ایتونو کې به د قیامت سختي بیان شوې وه، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم به یې په اړه داسې فرمایل:

شَيَّبَتْنِي هُودٌ وَأَخَوَاتُهَا قَبْلَ الْمَشِيْبِ.[2]

ژباړه: زه سورت هود او د دې په څېر نورو سورتونو (سورت الواقعه،

---

(۱) صحیح البخاري: حدیث:٦.

(۲) جامع الترمذي: حدیث: ۳۲۹۷.

سورت المرسلات، سورت عم یتساءلون، بوډا کړم

## ۳۶- په روژه مبارکه کې سخاوت

خوږو ورونو!

د روژې په ځانګړو عملونو کې یو عمل صدقه او خیرات هم دی، عبدالله بن عباس رضي الله عنهما فرمايي:

كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَجْوَدَ النَّاسِ بِالْخَيْرِ، وكَانَ أَجْوَدَ مَا يَكُونُ فِي شَهْرِ رَمَضَانَ فَإِذَا لَقِيَهُ جِبْرِيلُ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَجْوَدَ بِالْخَيْرِ مِنَ الرِّيحِ الْمُرْسَلَةِ.[۱]

ژباړه: رسول الله صلی الله علیه وسلم د سخاوت په کارونو کې تر ټولو زيات سخي و او تر ټولو زيات سخاوت به يې په روژه کې کاوه، په دې مياشت کې به (د قران د دورې لپاره) جبریل ورسره یوځای کېده، نو د رسول الله صلی الله علیه وسلم سخاوت به دومره زيات او تېز شو، لکه د هوا په څېر، بلکې له دې څخه هم زيات

له دې څخه داسې معلومېږي، چې د روژې په مياشت کې تر نورو مياشتو زيات سخاوت او صدقې کول په کار دي.

**د صدقې او خیرات مطلب:**

د الله تعالی د رضا لپاره د بې وزلو، فقیرانو، مسکینانو، معذورو او بې وسه خلکو اړتياوې پوره کول او د هغوی له حال څخه ځان خبرول، بې جامو خلکو ته جامې ورکول، وږو خلکو ته غذا برابرول، د ناروغو علاج کول، د يتيمانو سرپرستي کول، د معذورو خدمت کول، د پوروړو پور پرې کول او نور داسې کارونه چې د خلکو سره مرسته او همدردي په کې

(۱) صحيح مسلم: حديث:۲۳۰۸.

وي.
په سلفو صالحینو کې د دوډۍ ورکولو جذبه ډېره زیاته وه او دا لړۍ یې تر بې وزلو او وړو کسانو پورې محدوده نه وه، تر دې چې خپل دوستان او نیک خلک به یې هم دعوتول او د دعوت شوق یې ډېر زیات و، ددې لپاره چې په خپلو منځونو کې مینه او محبت زیات شي او د نېکو خلکو په دعاګانو په کور کې خیر او برکت پیدا کېږي.

## ۳۷- د روژه ماتې ورکولو ثواب

خوږو ورونو!
د روژه ماتي ورکولو ډېر لوی اجر دی، رسول الله صلی الله علیه وسلم یې په اړه فرمایلي:
مَنْ فَطَّرَ صَائِمًا كَانَ لَهُ مِثْلُ أَجْرِهِ، غَيْرَ أَنَّهُ لَا يَنْقُصُ مِنْ أَجْرِ الصَّائِمِ شَيْئًا.(۱)
ژباړه: چا چې روژه لرونکي ته روژه ماتی ورکړ، نو ده ته هم د روژه نیونکي په اندازه ثواب ورکول کېږي، بې له دې چې د روژه نیونکي په اجر کې څه کمی راشي
په یو بل حدیث کې یې فرمایلي دي:
مَنْ فَطَّرَ صَائِمًا أَوْ جَهَّزَ غَازِيًا فله مِثْلُ أَجْرِهِ.(۲)
ژباړه: چا چې یو روژه نیونکي ته روژه ماتی ورکړ یا یې یو مجاهد ته سامان ورکړ او جهاد ته یې تیار کړ، نو ده ته هم د هغوی په شان ثواب دی

---

(۱) جامع الترمذي: الصوم، حدیث:۸۰۷.
(۲) شرح السنة: حدیث:۱۸۱۹.

**د روژې په مياشت کې عمره کول:**

همدارنګه د روژې په مياشت کې د عمرې هم ډېر زيات ثواب دی، الله تعالی دې موږ، ته بيا بيا د ايمان زياتونکې نېکبختي رانصيب کړې. امين يا رب العلمين!

رسول الله صلی الله عليه وسلم يوې ښځې ته وفرمايل:

فَإِذَا كَانَ رَمَضَانُ اعْتَمِرِي فِيهِ، فَإِنَّ عُمْرَةً فِي رَمَضَانَ حَجَّةٌ.[1]

ژباړه: کله چې د روژې مياشت راشي، نو ته په هغه کې عمره وکړه، ځکه چې په روژه کې عمره د حج په شان ثواب لري

سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهِ، وَسُبْحَانَ اللهِ الْعَظِيمِ.

او په بخاري شريف کې په بل روايت کې دا الفاظ دي:

حَجَّةً مَعِي.

ژباړه: له ماسره د حج کولو برابر دي

په دې ځای کې د دې ښځې نوم هم ام سنان انصاريه بيان شوی دی.

## ۳۸- د دوشنبې او پنجشنبې د ورځې د روژې استحباب

خوږو ورونو!

الله تعالی دې پر تاسو رحم وکړي، په دې ځان پوه کړئ، چې د الله تعالی خاص بنده ګان يوازې د فرضي روژې نه، بلکې د نفلي روژې هم ډېره پابندي کوي، لکه څرنګه چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم عادت و، چې هره دوشنبه او پنجشنبه به يې روژه نيوه، ابو هريره رضي الله عنه فرمايي:

(۱) صحيح البخاري: العمرة، حديث:۱۷۸۲.

تُعْرَضُ الأَعْمَالُ يَوْمَ الاِثْنَيْنِ وَالخَمِيسِ، فَأُحِبُّ أَنْ يُعْرَضَ عَمَلِي وَأَنَا صَائِمٌ.[۱]

ژباړه: د دوشنبې او پنجشنبې په ورځ (الله تعالی ته) اعمال وړاندې کېږي، نو زه دا خوښوم چې زما اعمال په داسې حال کې (د الله تعالی په دربار کې) وړاندې شي چې زه روژه يم.

**په هره مياشت کې د درې ورځو روژې استحباب:**

د هرې قمري مياشتې په ۱۳- ۱۴ - ۱۵ روژه ونيسئ!

له عبدالله بن عمرو بن عاص رضي الله عنه څخه روايت دی، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي:

صَوْمُ ثَلاَثَةٍ ايام مِنْ كُلِّ شَهْرٍ صَوْمُ الدَّهْرِ كله.[۲]

ژباړه: د هرې مياشتې درې ورځې روژه نيول د ټول کال روژه نيولو برابر دي (يا د ټل روژې نيولو برابر دي)

**د شعبان د روژې استحباب:**

رسول الله صلی الله عليه وسلم به د شعبان زياتره ورځې روژه نيوله، عايشه رضي الله عنها فرمايي

كَانَ يَصُومُ شَعْبَانَ إِلاَّ قَلِيلاً.[۳]

ژباړه: رسول الله صلی الله عليه وسلم پرته له يو څو ورځو د شعبان د مياشتې ټولې ورځې روژې نيولې

موږ مسلمانانو لپاره دا حکم دی، چې د شعبان د مياشتې په لومړۍ

---

(۱) سنن ترمذي: ابواب الصوم، حديث:۱۳۷.

(۲) صحيح البخاري: الصوم،حديث:۱۱۵۹.

(۳) صحيح البخاري: الصوم،حديث:۱۹۷۹.

نیمایي کې روژه نیولی شو، خو په دویمه نیمایي کې له روژې څخه منع شوې، ځکه چې د روژې د میاشتې فرض روژو لپاره د انسان قوت او طاقت پر ځای شي. په رسول الله صلی الله علیه وسلم کې روحاني قوت زیات و، ځکه د شعبان روژو نه شو کمزروی کولی، ځکه یې بې پېښنمي مسلسل روژې هم نیوې، مګر خپل امت یې له دې کار څخه منع کړی دی

## د ډوډۍ د نشتوالي په صورت کې روژه:

سرېېره پر دې کله به چې په کور کې څه نه و، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم به بیا هم روژه نیوه.

## د عاشورې او نهم محرم د روژې فضیلت:

رسول الله صلی الله علیه وسلم به د عاشورې ( لسم محرم ) په ورځ روژه نیوه او د ژوند په اخري کال یې وفرمایل:

لَئِنْ بَقِيتُ إِلَى قَابِلٍ لَأَصُومَنَّ التَّاسِعَ.[1]

ژباړه: که چېرې راتلونکی کال ژوندی پاتې شوم، نو د نهم محرم روژه به ( هم ) ضرور نیسم

په یو بل روایت کې رسول الله صلی الله علیه وسلم حکم فرمایلی دی:

تاسو د عاشورې روژه ونیسئ او د یهودو مخالفت وکړئ او ( له دې سره سره ) یو ورځ مخکې او یا وروسته روژه ونیسئ

نو ځکه اوس دوه روژې نیول مسنونې دي، نهم او لسم محرم او یا لسم او یوولسم محرم روژه.

ابو قتاده رضي الله عنه فرمایي، چې له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه د عاشورې ورځې د روژې په اړه پوښتنه وشوه، نو رسول الله صلی

(۱) صحیح مسلم: الصیام، حدیث:۱۱۳٤.

الله علیه وسلم وفرمایل:

يُكَفِّرُ السَّنَةَ الْمَاضِيَةَ.[۱]

ژباړه: دا د تېر کال د ګناهونو کفاره ده

افسوس! چې ځينې مسلمانان خو د نهم او لسم محرم روژه نيسي او په بدعاتو او رواجونو يې سخت عمل کوي. الله تعالی دې موږ ته د اصلاح توفيق راکړي امين يارب العالمين!

د شوال شپږ روژې:

رسول الله صلی الله علیه وسلم به د شوال شپږ روژې نيولې، دا روژې په دې اعتبار سره ارزښت لري، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم يې په اړه فرمايلي:

مَنْ صَامَ رَمَضَانَ ثُمَّ أَتْبَعَهُ سِتًّا مِنْ شَوَّالٍ، كَانَ كَصِيَامِ الدَّهْرِ.[۲]

ژباړه: چا چې د روژې د مياشتې روژې ونيولې او بيا يې ورپسې د شوال د مياشتې شپږ روژې ونيولې لکه ټوله زمانه يې چې روژې ونيولې

د دې مطلب دادی، چې د روژې د مياشتې روژې الحسنة بعشر امثالها له مخې درې سوه روژې شوې او شپږ روژې شپيته روژې شوې او قمري کال هم درې سوه شپيته ورځې دی، داسې شوه لکه چې مسلمان صائم الدهر (تل روژه نيونکی) شو، نو هر مسلمان لپاره کار دي، چې د روژې د مياشتې وروسته شپږ روژې ونيسي او د الله تعالی په نزد تل روژه نيونکی وشمېرل شي، دا شپږ روژې که په پرله پسې ډول وي او که په ځنډونکي ډول، دواړه جايز دي، خو د شوال په مياشت کې روژې نيول

(۱) صحيح مسلم: الصيام، حديث: ۱۱۶۲.

(۲) صحيح مسلم: الصيام، حديث: ۱۱۶٤.

ضروري دي.

**د غور او فکر دعوت:**

الله تعالی غواړي چې د یوې میاشتې د پرله پسې روژو په تکرار سره د مسلمانانو ټولنې او هیوادونه داسې کړي، چې نېکي په کې غالبه او بدي په کې مغلوبه وي، خیر پر مخ ځي او شر ته د ښکاره کېدو موقع نه پیداکېږي، د حق ملګري سور مخې او د باطل ملګري تور مخي وي خو افسوس!!!

چې نن زموږ په ټولنو کې حالت د دې خلاف دی، نېکي مغلوبه او بدي غالبه ده، شر ډېر ښه خپرېږي او خیر نه، د حق قوتونه کمزوري دي او د باطل قوتونه عیش او ارام کوي، تر دې چې نېکي کوونکي په پټه خوله ګرځي او بد کاره په ازادانه او فخر سره بدي کوي، په داسې حال کې چې موږ هرکال د روژې د میاشتې روژې نیسو، خو له دې سره هم د نېکۍ عمومي محیط نه جوړېږي، په موږ کې لږ بدلون هم نه راځي او موږ د بد اخلاقۍ په ژورو کندو کې لوېږو داسې ولې؟

ددې سبب دا دی چې موږ روژه دیو رواج په ډول نیسو او د روژې د روح په ځان کې د جذبولو کوښښ نه کوو. د یو محدود وخت په دوران کې له خوړلو او څښلو څخه پرهېز کوو، خو له ابدي محرماتو پرهېز ضروري نه بولو.

## ۳۹- د امن او سکون په اړه یوه ښکلې نسخه

**ددې سکون په اړه الله تعالی فرمایي:**

﴿ اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ تَطْمَئِنُّ قُلُوْبُهُمْ بِذِكْرِ اللّٰهِ ؕ اَلَا بِذِكْرِ اللّٰهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوْبُ ﴾.

(الرعد: ۲۸).

ژباړه: د مومنانو زړونه د الله تعالی په ذکر ډاډ ترلاسه کوي. په یاد ولرئ؛ د الله تعالی ذکر زړونو ته ډاډ ورکوي.

**د ذکر ډولونه:**

له ذکر څخه د اسې اعمال مراد دي، چې الله تعالی هغه ضروري ګرځولي وي یا په هغې ورته نږدېوالی ترلاسه کېږي. دا ذکر د ژبې هم دی، لکه د الله تعالی حمد او ثنا ویل او د هغه لویي بیانول. دا ذکر په زړه هم کېږي، لکه په دنیا کې چې د الله تعالی په پیدا کړل شوو نښو کې فکر وشي او دا ذکر په غړو هم اداء کېږي لکه روژه، لمونځ، زکات صدقه او داسې نور.

**د الله تعالی ذکر پرېښودل مرګ دی:**

له ابو موسی اشعري رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

مَثَلُ الَّذِي يَذْكُرُ رَبَّهُ وَالَّذِي لاَ يَذْكُرُ مَثَلُ الْحَيِّ وَالْمَيِّتِ.(۱)

ژباړه: د هغه شخص مثال چې خپل رب یادوي او نه د هغه چې یې یادوي، لکه د مړي او ژوندي دی.

**د الله تعالی په اړه ښه ګمان درلودل:**

له ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دا قدسي حدیث بیان کړ:

(۱) صحیح البخاري: الدعوات، حدیث:٦٤٠٧.

أَنَا عِنْدَ ظَنِّ عَبْدِي بِي وَأَنَا مَعَهُ إِذَا ذَكَرَنِي فَإِنْ ذَكَرَنِي فِي نَفْسِهِ ذَكَرْتُهُ فِي نَفْسِي وَإِنْ ذَكَرَنِي فِي مَلأٍ ذَكَرْتُهُ فِي مَلأٍ خَيْرٍ مِنْهُمْ.[۱]

ژباړه: زه له بنده سره د هغه د ګمان مطابق یم، لکه څرنګه چې هغه زما په اړه ګمان ساتي. او کله چې هغه زما ذکر کوي، نو زه له هغه سره یم که هغه مې په زړه کې یادوي، نو زه یې هم له خپل ځان سره یادوم او که هغه مې په یو مجلس کې یاد کړي، نو زه یې په داسې مجلس کې یادوم، چې له دې څخه به غوره وي (یعنې د پرېښتي مجلس).

د پورته حدیث مطلب دا دی، چې الله تعالی ښونکی دی او انسان باید په دې یقین سره داسې کارونه وکړي، چې د الله تعالی د رضا سبب وګرځي او له دې وروسته انسان باید په الله تعالی ښه ګمان وساتي.

درنو ورونو!

د زړه له کومي دعاء وکړئ، چې الله تعالی راته د خپل ذکر توفیق راپه برخه کړي.

**د قیامت په ورځ به دنیاوي خوښۍ په کار رانه شي:**

ځکه چې د الله تعالی ذکر په دې دنیا کې جنت دی، څوک چې له دې انکار وکړي، نو ګویا هغه د جنت څخه انکار وکړ.

له معاذ رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم زما لاس ونیوه او ویې فرمایل:

ای معاذه! زه درته وصیت کوم، چې له هر لمانځه وروسته دا کلمې مه پرېږده:

(۱) صحیح البخاري: التوحید، حدیث: ۷۵۳۷.

اللَّهُمَّ أَعِنِّى عَلَى ذِكْرِكَ وَشُكْرِكَ وَحُسْنِ عِبَادَتِك.(۱)

ژباړه: ای الله! په خپل ذکر، شکر او ښایسته عبادت کې زما مرسته وکړه.

## ۴۰- د توبې ډېروالی

زما درنو ورونو!

موږ سره له دې چې ډېر ګناهونه کوو، خو بیا هم الله تعالی ته رجوع نه کوو او له هغه بښنه نه غواړو، په داسې حال کې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به بیاهم له الله تعالی نه ډېره بښنه غوښته.

له ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی، چې ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اورېدلي دي:

وَاللهِ إِنِّي لأَسْتَغْفِرُ اللهَ وَأَتُوبُ إِلَيْهِ فِي الْيَوْمِ أَكْثَرَ مِنْ سَبْعِينَ مَرَّةً.(۲)

ژباړه: په الله قسم! زه په ورځ کې له الله تعالی څخه له اویا ځلو زیاته بښنه غواړم.

### د استغفار ګټې:

الله تعالی د استغفار د ګټو په اړه فرمایي:

﴿ فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ إِنَّهُ كَانَ غَفَّارًا ۝ يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُمْ مِدْرَارًا ۝ وَيُمْدِدْكُمْ بِأَمْوَالٍ وَبَنِينَ وَيَجْعَلْ لَكُمْ جَنَّاتٍ وَيَجْعَلْ لَكُمْ أَنْهَارًا ۝ ﴾ (نوح: ۱۱).

ژباړه: له خپل رب څخه بښنه وغواړئ، بې شکه هغه بښونکی دی. هغه به پر تاسو له اسمان څخه ښه بارانونه ووروي. او ستاسو له اولاد او مال سره به مرسته وکړي او ستاسو لپاره به باغ جوړ کړي او ستاسو لپاره به نهرونه

(۱) سنن ابي داؤد، الوتر، حدیث: ۱۵۲۲.
(۲) صحیح البخاري: الدعوات، حدیث: ۶۳۰۷

جوړ کړي

**ارتکاب گناه نه ده، په دې همښوالی گناه ده:**

خو شرط هغه دی، چې الله تعالی په قران کریم کې بیان کړی دی:

﴿وَ لَمْ يُصِرُّوْا عَلٰى مَا فَعَلُوْا وَ هُمْ يَعْلَمُوْنَ﴾ (آل عمران: ۱۳۵).

هغه باید په گناه ټینګکار ونه کړي، ځکه چې له ټینګکار سره له الله تعالی بښنه غوښتل بې معنا عمل دی. کله چې مو گناه نه وي پرېښې او له الله تعالی داسې دعاء غواړئ: ای الله! ما ته بښنه وکړه، نو دا یو نااشنا او له الله تعالی سره ټوکې کول دي.

**له توحید سره استغفار:**

له انس بن مالک رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

يَا ابْنَ آدَمَ إِنَّكَ مَا دَعَوْتَنِي وَرَجَوْتَنِي غَفَرْتُ لَكَ عَلَى مَا كَانَ مِنْكَ، وَلاَ أُبَالِي، يَا ابْنَ آدَمَ لَوْ بَلَغَتْ ذُنُوبُكَ عَنَانَ السَّمَاءِ ثُمَّ اسْتَغْفَرْتَنِي غَفَرْتُ لَكَ، وَلاَ أُبَالِي، يَا ابْنَ آدَمَ إِنَّكَ لَوْ أَتَيْتَنِي بِقُرَابِ الأَرْضِ خَطَايَا ثُمَّ لَقِيتَنِي لاَ تُشْرِكُ بِي شَيْئًا لأَتَيْتُكَ بِقُرَابِهَا مَغْفِرَةً.[1]

ژباړه: ای د ادم زویه! تر کومې پورې چې مې ته بلې (بښنه را څخه غواړې) او له ما څخه تمه لرې، نو ته چې په کوم حالت کې هم یې، نو زه درته بښنه کوم او زه کومه پروا نه لرم. ای د ادم زویه! که چېرې ستا گناهونه تر اسمان پورې ورسېږي او بیا ته له ما څخه بښنه وغواړې، نو زه در ته بښنه کوم او کومه پروا نه لرم. ای دادم زویه! که چېرې تو له ځمکه

(۱) جامع ترمذي: الدعوات، حدث: ۳۵٤۰.

ستا له ګناهونو ډکه شي او بیا ته راسره په داسې حال کې مخ شې، چې له ما سره دې کوم شریک نه وي نیولی، نو زه به له ښځنې سره له تاسره مخ شم.

## ۴۱- دعاء د مومن وسله ده

درنو ځوانانو!

دعاء د نازل شوو افتونو لپاره یو ګتور سامان دی. دعاء کونکی الله تعالی نه ردوي. په دې اړه الله تعالی فرمايي:

﴿ وَ إِذَا سَأَلَكَ عِبَادِىْ عَنِّىْ فَإِنِّىْ قَرِيْبٌ ؕ أُجِيْبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ إِذَا دَعَانِ ۙ فَلْيَسْتَجِيْبُوْا لِىْ وَ لْيُؤْمِنُوْا بِىْ لَعَلَّهُمْ يَرْشُدُوْنَ ۝ ﴾. (البقره:۱۸٦).

ژباړه: کله چې زما بنده ګان له تا څخه زما په اړه پوښتنه وکړي، نو زه نږدې یم او د غوښتونکي غوښتنه قبلوم، کله چې مې راوبلي. خلکوته پکار دي، چې زما خبره ومني او پرې ایمان راوړي.

په یو حدیث کې له نعمان بن بشیر رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

الدُّعَاءُ هُوَ الْعِبَادَةُ.[1]

دعاء یو عبادت دی.

**دعاء څه شی دی؟:**

دعاء خپله کمزوري او عاجزي الله تعالی ته ښودل دي. الله تعالی د شپې په اخري برخه کې د دنیا اسمان ته راکوزیږي او د دنیا خلکو ته خطاب کې وايي:

مَنْ يَدْعُونِي فَأَسْتَجِيبَ لَهُ؟ مَنْ يَسْأَلُنِي فَأُعْطِيَهُ؟ مَنْ يَسْتَغْفِرُنِي

---

(۱) سنن ابي داؤد: الصلاة، حدیث: ۱۴۷۹.

فَأَغْفِرَ لَهُ.(۱)

ژباړه: څوک دی داسې، چې له ما دعاء وغواړي او زه یې قبوله کړم؟ څوک داسې شته، چې له ما څه وغواړي او زه څه ورکړم؟ څوک داسې شته، چې له ما بښنه وغواړي او زه ورته بښنه وکړم.

**د جامع دعاګانو پابندي کول:**

ښه خبره دا ده، چې د خپلو الفاظو پرځای په دعاګانو کې مسنون الفاظ استعمال کړو، ځکه چې په دې کې به پراخه مفهوم پروت وي.

له عایشې رضي الله عنها څخه روایت دی:

كَانَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم يَسْتَحِبُّ الْجَوَامِعَ مِنَ الدُّعَاءِ وَيَدَعُ مَا سِوَى ذَلِكَ.

ژباړه: رسول الله صلی الله علیه وسلم به جامعې دعاګانې خوښولې او له دې پرته نورې به یې پرېښودلې.

**یوه جامع دعاء:**

له انس بن مالک رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به زیاتره دا دعاء کوله:

اللهُمَّ آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً، وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ.(۲)

ژباړه: ای الله! موږ ته په دنیا کې هم نېکي راکړه او په اخرت کې هم، او د اور له عذاب مو وژغوره.

(۱) صحیح البخاري: التهجد، حدیث: ۱۱۴۵.
(۲) صحیح البخاري: الدعوات، حدیث: ۶۳۸۹.

# ۴۲- پر شتمن شخص حج فرض دی

حج په اسلامي ارکانو کې یو رکن او په غوره اعمالو کې یو افضل عمل دی. له دې امله که څوک د حج کولو توان ولري، نو هغه دې ژر تر ژره حج وکړي. مطلب دا چې که څوک دومره توان په ځان کې ویني،چې د حج توښه ولري او د کور کفالت هم وکړي او د خپل راتګه پورې یې دا توښه وشي، نو په دې شخص حج فرض دی. الله تعالی په دې اړه فرمایي:

﴿ وَ لِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ اِلَيْهِ سَبِيْلًا ۚ وَ مَنْ كَفَرَ فَاِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ عَنِ الْعٰلَمِيْنَ ﴾. (ال عمران : ۹۷)

ژباړه: او د الله تعالی لپاره په خلکو حج کول لازم دي، څوک چې ددې لارې د تلو توان ولري او چا چې کفر وکړ نو بې شکه الله تعالی له ټولې نړۍ بې پروا دی.

**په ټول ژوند کې یو ځل حج فرض دی:**

له ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی،چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په خطبه کې وفرمایل:

يَاأَيُّهَا النَّاسُ قَدْ فَرَضَ اللّٰهُ عَلَيْكُمُ الْحَجَّ فَحُجُّوا.[1]

ژباړه: ای خلکو! الله تعالی پر تاسو حج فرض کړی دی، پس حج وکړئ.

(۱) صحیح مسلم: الحج، حدیث: ۱۳۳۷.

## ۴۳- په سنت طريقه حج كولو سره مخكښني ګناهونه ببنل كېږي

د مبرور حج تقاضا دا ده، چې تاسو حج د رسول الله صلی الله علیه وسلم په طریقه کړئ او په دې دوران کې له بې ځایه خبرو، بې حیایی او جنسي خبرو ځخه ډډه وکړئ. همدارنګه په دې دوران کې له شخړو هم ډډه کول پکار دي. الله تعالی فرمایي:

﴿ اَلۡحَجُّ اَشۡهُرٌ مَّعۡلُوۡمٰتٌ ۚ فَمَنۡ فَرَضَ فِيۡهِنَّ الۡحَجَّ فَلَا رَفَثَ وَ لَا فُسُوۡقَ ۙ وَ لَا جِدَالَ فِى الۡحَجِّ ؕ ﴾ ( البقرة : ۱۹۷ )

ژباړه: د حج میاشتې (شوال، ذوالقعده، ذوالحجة) پېژندل شوې دي، چا چې په دې کې د حج کولو اراده وکړه، نو په دې کې نه جنسي خبرې روا دي، نه بدکاري او نه شخړه.

ابو هريرة رضي الله عنه فرمايي، چې ما له رسول الله صلى الله عليه وسلم ځخه واورېده:

مَنْ حَجَّ لِلَّهِ فَلَمْ يَرْفُثْ وَلَمْ يَفْسُقْ رَجَعَ كَيَوْمِ وَلَدَتْهُ أُمُّهُ.[1]

ژباړه: چا چې د الله تعالی لپاره حج وکړ، کومه فحش کاري او بې ځایه خبرې یې په کې ونه کړې او نه یې د الله تعالی له احکامو سرغړونه وکړه، نو هغه به داسې راستنېږي، لکه له مور ځخه چې اوس پیدا شوی وي.

(۱) صحيح البخاري: الحج، حديث: ۱۵۲۱.

# ۴۴- د حج قبلېدو لپاره حلال رزق شرط دی

درنو ځوانانو!

الله تعالی یوازې په حلال مال ترسره شوی حج قبلوي. په حرام مال کې نه برکت وي او نه یې ثواب کېږي.

له ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

إِذَا خَرَجَ الرَّجُلُ حَاجًّا بِنفقةٍ طَيِّبَةٍ، وَوَضَعَ رِجْلَهُ فِي الْغَرْزِ، فَنَادَى: لَبَّيْكَ اللَّهُمَّ لَبَّيْكَ، نَادَاهُ مُنَادٍ مِنَ السَّمَاءِ: لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ، زَادُكَ حَلالٌ، وَرَاحِلَتُكَ حَلالٌ، وَحَجُّكَ مَبْرُورٌ غَيْرُ مَأْزُورٍ، وَإِذَا خَرَجَ الرَّجُلُ بِالنَّفَقَةِ الْخَبِيثَةِ، فَوَضَعَ رِجْلَهُ فِي الْغَرْزِ، فَنَادَى: لَبَّيْكَ اللهم لَبَّيْكَ، نَادَاهُ مُنَادٍ مِنَ السَّمَاءِ: لا لَبَّيْكَ وَلا سَعْدَيْكَ، زَادُكَ حَرَامٌ وَنَفَقَتُكَ حَرَامٌ، وَحَجُّكَ مازورغَيْرُ ماجور.[1]

ژباړه: کله چې يو تن له حلال مال سره د حج لپاره ووځي او په زين پښه ږدي او لبیک اللهم لبیک ووايي، نو له اسمان څخه یو غږ کوونکی غږ کوي ستا لبیک دې قبول وي او الهي رحمت دې په تا نازل وي. ستا د سفر توښه حلاله، سورلۍ حلاله ، ستا حج قبول، له ګناهونو پاک دی. خو کله چې یو تن له حرامو سره ووځي او په زين پښه کېږدي او لبیک وايي، نو له اسمان څخه یو غږ کوونکی غږ کوي : ستا لبیک قبول نه دی اونه به در باندې رحمت وي، ځکه چې ستا توښه حرامه، ستا ګټه حرامه، حج دې په ګناه کړی او بې ثوابه دی.

(۱) رواه الطبراني.

## ۴۵- له ایمان او جهاد وروسته غوره عمل

له ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی، چې له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه پوښتنه وشوه :

أَيُّ الْعَمَلِ أَفْضَلُ؟ قَالَ إِيمَانٌ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ قِيلَ ثُمَّ مَاذَا ؟ قَالَ : الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللهِ قِيلَ ثُمَّ مَاذَا ؟ قَالَ : حَجٌّ مَبْرُورٌ.(۱)

کوم عمل غوره دی ؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل : پر الله تعالی او د هغه پر رسول ایمان راوړل. بیا وپوښتل شو : له دې وروسته کوم عمل غوره دی ؟ ورته یې وفرمایل : د الله تعالی په لاره کې جهاد کول. بیا وپوښتل شو : له دې وروسته کوم عمل ؟ ویې فرمایل : مبرور حج.

## ۴۶- د ذوالحجې په لومړیو لسو ورځو کې د روژې او نورو نېکیو فضیلت

له عباس رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل :

د ذوالحجې د لومړیو لسو ورځو په مقابل کې داسې کومه ورځ نه شته، چې په هغې کې الله تعالی ته ددې ورځو څخه نېک عمل ډېرخوښ وي صحابه کرامو عرض وکړ : ای د الله رسوله ! د الله تعالی په لاره کې جهاد کول هم نه ؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل : د الله تعالی په لاره کې جهاد کول هم نه، پرته له هغه مجاهد څخه، چې له خپل مال او ځان سره د جهاد لپاره ووت او بیا د کوم شي سره بېرته راستون نه شو (شهید شو نو دا یقیناً له نورو څخه غوره دی).

---

(۱) صحیح البخاري.

## ۴۷- د شرعي علم ترلاسه کولو ارزښت

د علم تر لاسه کول داسې شی دی، لکه ماهي چې بې له اوبو ژوند نه شي تېرولای، ځکه چې هغه له علم څخه لاندې خبرې زده کوي:

۱- الهي احکام معلوموي.

۲- د رسول الله صلی الله علیه وسلم د سیرت او د هغه د احکامو حق اداء کوي.

۳- په اسلامي ټولنه کې له ټولو حقوقو ځان خبروي.

۴- د علم په ترلاسه کولو سره د حق او باطل دروازې پرانیزي.

۵- په نېکو اعمالو ژوند ښایسته کوي او د اخرت لپاره تیاری نیسي.

۶- ځان ته د ارام او هوسا ژوند وسایل برابروي.

## ۴۸- د علم زده کول له غېږې څخه ترګوره پورې

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

طالبان لایشبعان: طالب العلم وطالب المال.

ژباړه: دوه ډوله غوښتونکي هېڅکله نه مړېږي، په دې کې یو د علم زده کوونکی او بل د مال طلب کوونکی.

او الله تعالی فرمایي:

﴿ وَقُل رَّبِّ زِدْنِي عِلْمًا ﴾. (طه: ۱۱۴)

ژباړه: او وو ایه، چې ای الله! زما علم نور هم زیات کړه.

## ۴۹- ديني مجلسونه د جنت باغچې

له ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي:

وَمَا اجْتَمَعَ قَوْمٌ فِي بَيْتٍ مِنْ بُيُوتِ اللهِ يَتْلُونَ كِتَابَ اللهِ وَيَتَدَارَسُونَهُ بَيْنَهُمْ إِلاَّ نَزَلَتْ عَلَيْهِمُ السَّكِينَةُ وَغَشِيَتْهُمُ الرَّحْمَةُ وَحَفَّتْهُمُ الْمَلاَئِكَةُ وَذَكَرَهُمُ اللهُ فِيمَنْ عِنْدَهُ.(١)

ژباړه: او څوک چې د الله تعالی له کورونو څخه په يو کور کې راټول شي او دقران کريم تلاوت کوي او د هغې د درس او تدريس پابندي کوي، نو په هغوی د الله تعالی له لوري سکينه نازلېږي، د الله تعالی رحمت دوی پټوي او د الله تعالی پرښتې يې چاپېروي او الله تعالی دداسې خلکو يادونه په خپل مخلوق (پرښتو) کې کوي.

## ۵۰- د امر بالمعروف او نهي عن المنكر فريضه

ګرانه ځوانه وروره!

بايد تل هڅه وکړې، چې خپل مسلمان ورور ته په نېکۍ حکم وکړې او له بدو يې منعه کړې. الله تعالی فرمايي:

﴿كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ﴾

(ال عمران: ١١٠).

ژباړه: تاسو غوره امت ياست، چې خلکو لپاره ويستل شوي ياست، تاسو به خلکو ته په نېکۍ امر کوئ او له بدو کارونو به يې منعه کوئ.

له نعمان بن بشير رضي الله عنه څخه روايت دی، چې رسول الله صلى الله

(١) صحيح مسلم: الذکر والدعاء والتوبة والاستغفار، حديث: ٢٦٩٩.

علیه وسلم فرمایلي دي:

مَثَلُ الْقَائِمِ فِي حُدُودِ اللهِ وَالْوَاقِعِ فِيهَا كَمَثَلِ قَوْمٍ اسْتَهَمُوا عَلَى سَفِينَةٍ فَصَارَ بَعْضُهُمْ أَعْلَاهَا وَبَعْضُهُمْ أَسْفَلَهَا وَكَانَ الَّذِينَ فِي أَسْفَلِهَا إِذَا اسْتَقَوْا مِنَ الْمَاءِ مَرُّوا عَلَى مَنْ فَوْقَهُمْ فَقَالُوا لَوْ أَنَّا خَرَقْنَا فِي نَصِيبِنَا خَرْقًا وَلَمْ نُؤْذِ مَنْ فَوْقَنَا فَإِنْ تَرَكُوهُمْ وَمَا أَرَادُوا هَلَكُوا جَمِيعًا وَإِنْ أَخَذُوا عَلَى أَيْدِيهِمْ نَجَوْا وَنَجَوْا جَمِيعًا.(۱)

ژباړه: د هغه شخص مثال، چې د الله تعالی حدود قایموي (امر باالمعروف کوي او خلک له بدو چارو منعه کوي) او خپله په دې حدودو کې وي، د هغو خلکو په څېر دی چې په یوه کښتۍ کې روان وي، دوی د کښتۍ (د پورتنۍ او ښکتنۍ برخو لپاره) پچه واچوي، پس په دې کې ځینې په پورته برخه کښېناستل او ځینې په ښکتنۍ برخه. د ښکتنۍ برخې خلک چې کله اوبو ته اړتیا ولري، نو پورته خېژي او په پورتنو خلکو تېرېږي. له دې امله د کښتنۍ برخې والا داسې فکر وکړ، چې موږ باید په ښکتنۍ برخه کې یو سوری وباسو (ترڅو له پورته تلو خلاص شو او له لاندې ځای څخه اوبه واخلو) او پورتنو خلکو ته تکلیف ورنه کړو (نو څومره ښه به وي) په دې توګه پورتنو خلکو دوی له خپلې ارادې سره پرېښودل (دوی یې له سوري ویستلو منعه نه کړ) نو ټول به له منځه ولاړ شي. او که چېرې دوی یې لاس ونیسي، نو خپله به هم وژغورل شي او نور مسافر به هم له دې وژغوري.

په یو حدیث کې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

---

(۱) صحیح البخاري: الشركة، باب هل يقرع في القسمة ؟ حديث : ۲۴۹۳.

كَلاَّ وَاللهِ! لَتَأْمُرُنَّ بِالْمَعْرُوفِ وَلَتَنْهَوُنَّ عَنِ الْمُنْكَرِ وَلَتَأْخُذُنَّ عَلَى يَدِي الظَّالِمِ وَلَتَأْطُرُنَّهُ عَلَى الْحَقِّ أَطْرًا وَلَتَقْصُرُنَّهُ عَلَى الْحَقِّ قَصْرًا أَوْ لَيَضْرِبَنَّ اللهُ بِقُلُوبِ بَعْضِكُمْ عَلَى بَعْضٍ ثُمَّ لَيَلْعَنَنَّكُمْ كَمَا لَعَنَهُمْ.(۱)

ژباړه: هيڅکله نه، په الله قسم! تاسو ضرور د نېکۍ حکم کوئ او خلک له بدو کارونو منعه کوئ او د ظالم لاس نيسئ او په زور يې حق ته اړباسئ، که نه نو الله تعالى به ستاسو ټولو زړونه يو ډول کړي، بيا به پر تاسو لعنت وايي، لکه څنګه يې چې په هغوی وايه.

## ۵۱ - خپله کورنۍ او اولاد ته د الهي احکامو حکم

الله تعالى فرمايي:

﴿ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا أَنْفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ عَلَيْهَا مَلَائِكَةٌ غِلَاظٌ شِدَادٌ لَا يَعْصُونَ اللَّهَ مَا أَمَرَهُمْ وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ ۞ ﴾. (التحريم : ۷).

ژباړه: اى مومنانو! خپل ځان او اولاد مو د دوزخ له اور څخه وژغورئ، چې خشاک به يې انسانان او تيږې وي او په دې به د سخت خوی پرښتې ټاکل شوې وي، چې کوم حکم ورته الله تعالى کوي، د هغې څخه سرغړونه نه کوي او کوم حکم چې ورته کوي، هغه پرځای کوي.

عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرمايي، چې ما له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه اورېدلي دي:

كُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْؤُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ، الإِمَامُ رَاعٍ، وَمَسْؤُولٌ عَنْ

(۱) سنن ابي داود: باب الامر والنهي، حديث: ۴۳۳۶

رَعِيَّتِهِ وَالرَّجُلُ رَاعٍ فِي أَهْلِهِ وَهُوَ مَسْؤُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ وَالْمَرْأَةُ رَاعِيَةٌ فِي بَيْتِ زَوْجِهَا وَمَسْؤُولَةٌ عَنْ رَعِيَّتِهَا وَالْخَادِمُ رَاعٍ فِي مَالِ سَيِّدِهِ وَمَسْؤُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ فَكُلُّكُمْ رَاعٍ وَمَسْؤُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ.[1]

تاسو ټول مسولان یاست او له ټولو به د خپل رعیت په اړه پوښتنه کیږي. امام (حکمران) مسول دی او د خپل رعیت په اړه به ترې پوښتل کیږي. ښځه د خپل خاوند د کور مسوله ده او له هغې څخه به د خپل رعیت (د کور خلکو او ماشومانو) په اړه پوښتل کیږي. خادم د خپل اقا د مال مسول او نګران دی او ددې په اړه به ترې پوښتنه کیږي، پس تاسو ټول مسولین او نګرانان یاست او د خپل رعیت په اړه به در څخه پوښتنه کیږي.

## ۵۲ - په دعوت کې حکمت

ګرانه وروره!

خپل مسلمان ورور ته په ښه انداز سره دعوت ورکړه. په دې اړه الله تعالی فرمايي:

﴿ اُدْعُ إِلَىٰ سَبِيلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ ﴾ .(النحل : ۱۲۵).

ژباړه: د خپل رب لوري ته په ډېر حکمت او ښه وعظ سره دعوت کوه. باید له مومنانو سره په دې لار کې له نرم مزاج څخه کار واخیستل شي او د تېز مزاج په پرتله به ستا خبره پرې ډېره ژر اغېزه وکړي او په پراخ تندي به يې ومني. باید په یاد مو وي، چې د شاتو مچې په شاتو کېني.

(۱) صحيح البخاري: العتق، باب كراهية التطاول على الرفيق، حديث : ۲۵۵۳.

# ۵۳- هغه څوک چې په نېکۍ امر او له بدو منعه کوي او خپله پرې عمل نه کوي

په دې اړه الله تعالی فرمايي:

﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لِمَ تَقُولُونَ مَا لَا تَفْعَلُونَ ۞ كَبُرَ مَقْتًا عِندَ اللَّهِ أَن تَقُولُوا مَا لَا تَفْعَلُونَ ۞ ﴾. (الصف: ۲ - ۳).

ژباړه: ای مومنانو! تاسو ولې هغه خبره کوئ، چې خپله پرې عمل نه کوئ د الله تعالی په نزد دا خبره ډېره سخته ده، چې تاسو هغه خبرې کوئ، چې خپله پرې عمل نه کوئ.

له ابو زيد بن حارثه رضي الله عنه څخه روايت دی، چې ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اورېدلي دي:

يُؤْتَى بِالرَّجُلِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، فَيُلْقَى فِي النَّارِ، فَتَنْدَلِقُ أَقْتَابُ بَطْنِهِ، فَيَدُورُ بِهَا كَمَا يَدُورُ الْحِمَارُ بِالرَّحَى، فَيَجْتَمِعُ إِلَيْهِ أَهْلُ النَّارِ، فَيَقُولُونَ: يَا فُلَانُ مَا لَكَ؟ أَلَمْ تَكُنْ تَأْمُرُ بِالْمَعْرُوفِ، وَتَنْهَى عَنِ الْمُنْكَرِ؟ فَيَقُولُ: بَلَى، قَدْ كُنْتُ آمُرُ بِالْمَعْرُوفِ وَلَا آتِيهِ، وَأَنْهَى عَنِ الْمُنْكَرِ وَآتِيهِ.[1]

ژباړه: د قيامت په ورځ به يو تن راوستل شي او په اور کې به وغورځول شي. کولمې به يې بهر راوتلې وي او داسې به يې ګرځوي، لکه خر چې په مېچن کې ګرځي. بيا به ترې دوزخيان راټول شي او ورته به ووايي: ای فلانکيه! په تا څه وشو؟ ايا تا د نېکۍ حکم نه کاوه او له بدۍ دې څوک

---

(۱) صحيح البخاري: بدء الخلق، باب صفة النار، حديث: ۳۲۶۷.

نه منعه کول ؟ هغه به ورته ووايي : هو ! خلکو ته به مې په نېکۍ حکم کاوه، خو خپله مې نه کاوه او خلک به مې له بدو کارونو منعه کول او خپله به مې کاوه.

## ۵۴- په دنیا کې خیر او شر او له الله تعالی څخه وېره

درنو ورونو !

دا دنیا د امتحان کور دی، چې یو لوري ته الله تعالی د هدایت اسباب تیار او بل خوا ته یې د ازمېښت لپاره د ګمراه کولو اسباب پیدا کړي دي. الله تعالی فرمايي :

﴿ إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَٰٓؤُا ﴾ (فاطر : ۲۸).

ژباړه: د الله تعالی په بنده ګانو کې عالمان له ده څخه وېرېږي.

له ابو سعید خدري رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل :

كَيْفَ أَنْعَمُ وَصَاحِبُ الْقَرْنِ قَدِ الْتَقَمَ الْقَرْنَ وَاسْتَمَعَ الإِذْنَ مَتَى يُؤْمَرُ بِالنَّفْخِ فَيَنْفُخُ.[1]

ژباړه: زه څنګه خوشحاله اوسېدای شم، په داسې حال کې چې پوکې کوونکي (اسرافیل علیه السلام) شپېلۍ په خوله کې نیولې ده او د الله تعالی امر ته یې غوږ نیولی ، چې کله به ورته ددې شپېلۍ کولو امر کېږي، چې شپېلۍ ووهي.

(۱) سنن الترمذي: ابواب التفاسیر، سورة الزمر، حدیث : ۳۲۴۳.

# ۵۵ - پر الله تعالی یقین کول

ګرانه وروره!

په ټولو حالاتو کې تر دې چې په سختو حالاتو کې هم پر الله تعالی یقین ساته او د هغه له رحمت څخه مه ناهیلی کېږه. دا د ټولو پیغمبرانو تګلاره ده. الله تعالی فرمایي:

﴿ وَمَنْ يَتَوَكَّلْ عَلَى اللهِ فَهُوَ حَسْبُهُ ﴾. (الطلاق : ۳)

ژباړه: او چا چې پر الله تعالی یقین وکړ، نو الله تعالی به ورته کافي شي.

# ۵۶ - له ځان څخه ټیټو خلکو ته ګورئ

ګرانه وروره!

د دنیوي مال له مخې له ځان څخه پورته خلکو ته په کتو کې د نعمت ناشکري راځي، لکه څرنګه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

انْظُرُوا إِلَى مَنْ هُوَ أَسْفَلَ مِنْكُمْ، وَلَا تَنْظُرُوا إِلَى مَنْ هُوَ فَوْقَكُمْ، فَهُوَ أَجْدَرُ أَنْ لَا تَزْدَرُوا نِعْمَةَ اللهِ عَلَيْكُمْ.(۱)

ژباړه: داسې خلکو ته ګوره، چې (په دنیوي مال کې) له تا څخه کم وي او هغه چا ته مه ګوره، چې له تا څخه لوړ وي (په دنیوي مال کې). په دې توګه ډېره وړ (مناسبه) خبره ده، چې بیا تاسو د هغو نعمتونو ناشکري ونه کړئ، چې د الله تعالی له لوري پر تاسو لورېدلي دي.

---

(۱) صحیح البخاري: الرقاق، باب من ینظر الی من اسفل، حدیث ۶۴۹۰.

## ۵۷ - د خلکو په لاسونو کې چې څه دي د هغې څخه بې پروا شئ

درنو ځوانانو ورونو !

ځانونه له سوال کولو وژغورئ او له خلکو بې پروا وګرځئ ( په سوال کولو کې ) الله تعالی دا ډول صفتونه خوښوي او د داسې خلکو مرسته کوي، له عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دی،چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي :

مَنْ نَزَلَتْ بِهِ فَاقَةٌ فَأَنْزَلَهَا بِالنَّاسِ لَمْ تُسَدَّ فَاقَتُهُ، وَمَنْ نَزَلَتْ بِهِ فَاقَةٌ فَأَنْزَلَهَا بِاللهِ، فَيُوشِكُ اللهُ لَهُ بِرِزْقٍ عَاجِلٍ أَوْ آجِلٍ.[۱]

ژباړه: څوک چې په لوږه اخته شو او د خلکو په وړاندې یې شکایت وکړ، نو دده لوږه به ختمه نه شي او چا چې خپله لوږه الله تعالی ته وړاندې کړه، نو د الله تعالی له خوا به ورته ډېر ژر او یا وروسته رزق ورکړل شي.

## ۵۸ - د یو بل لپاره په غایبانه ډول د دعاء کولو فضیلت

ګرانه وروره ! مسلمان باید یوازې د ځان لپاره دعاء ونه کړي، بلکې د بل مسلمان لپاره یې هم وکړي، ځکه چې په دې اړه الله تعالی په یو ایت کې د مومنانو دا یو صفت بیان کړی دی :

﴿ رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِإِخْوَانِنَا الَّذِينَ سَبَقُونَا بِالْإِيمَانِ وَلَا تَجْعَلْ فِي قُلُوبِنَا غِلًّا لِّلَّذِينَ آمَنُوا رَبَّنَا إِنَّكَ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴾.(الحشر : ۱۰)

ژباړه: ای زموږ ربه ! موږ ته بښنه وکړه او زموږ هغو ورونو ته، چې له موږ څخه مخکې یې ایمان راوړی و او چا چې ایمان راوړی دی، نو زموږ په

(۱) سنن ابي داود: الزكاة باب الاستعفاف، حديث : ۱۶۴۵.

زړونو کې له هغوی سره کینه مه اچوه، ای زموږ ربه! بې شکه ته ډېر مهربان او ستر رحم کوونکی یې.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

دَعْوَةُ الْمَرْءِ الْمُسْلِمِ لأَخِيهِ بِظَهْرِ الْغَيْبِ مُسْتَجَابَةٌ عِنْدَ رَأْسِهِ مَلَكٌ مُوَكَّلٌ كُلَّمَا دَعَا لأَخِيهِ بِخَيْرٍ قَالَ الْمَلَكُ الْمُوَكَّلُ بِهِ آمِينَ وَلَكَ بِمِثْلٍ.[1]

ژباړه: که چېرې یو مسلمان په غاییانه ډول د بل مسلمان په حق کې دعاء وکړي، نو هغه دعاء قبلېږي. دده پر سر یوه پرښته مقررېږي، کله چې د خپل ورور لپاره دعاء کوي، نو پرښته ورته وایي: امین. او تاته دې هم د دې په اندازه وي.

## ۵۹ - الله تعالی ته د نږدې کېدو فارموله

الله تعالی په دې اړه فرمایي:

﴿قُلْ إِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّونَ اللهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللهُ وَ يَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَ اللهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾. (ال عمران: ۳۱)

ژباړه: ای محمده! اعلان وکړه، چې ای د دنیا خلکو! که چېرې الله تعالی ته نږدېوالی غواړئ، نو زما پیروي وکړئ، الله تعالی به له تاسو سره مینه وکړي، تاسو ته به ستاسو ګناهونه وبښي او بې شکه الله تعالی بښونکی او مهربان دی.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لاَ يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ حَتَّى أَكُونَ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنْ وَالِدِهِ

---

(۱) صحيح مسلم: والذكر والدعاء، بآب فضل الدعاء بظهر الغيب، حديث: ۲۷۳۳.

وَوَلَدِهِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ.[۱]

ژباړه: په هغه ذات قسم! چې زما ساه د هغه په لاس کې ده، په تاسو کې یو تن تر هغې پورې پوره مومن کېدای نه شي، چې زه ورته د پلار، مور، خور، ورور او ټولو خلکو ګران نه شم.

## ۶۰- د الله تعالی په لاره کې جهاد کول د اسلام روح دی

جهاد په اسلام کې د جنت له دروازو یوه دروازه ده، چې ددې له برکته الله تعالی اسلامي امت له خپګان څخه ژغوري. د جهاد له امله اسلام غالبه ګرځي او کفر مغلوبېږي. مسلمانان په هغه وخت کې خوارېږي، چې کله جهاد پرېږدي. رسول الله صلی الله علیه وسلم په دې اړه فرمايي:

إِذَا تَبَايَعْتُمْ بِالْعِينَةِ وَأَخَذْتُمْ أَذْنَابَ الْبَقَرِ وَرَضِيتُمْ بِالزَّرْعِ وَتَرَكْتُمُ الْجِهَادَ سَلَّطَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ ذُلاًّ لاَ يَنْزِعُهُ عَنْكُمْ حَتَّى تَرْجِعُوا إِلَى دِينِكُمْ.[۲]

ژباړه: کله چې تاسو د سود کاروبار پیل کړئ، د غواګانو لکۍ ونیسئ او پټیو طرف ته روان شئ او په همدې تکیه وکړئ او جهاد پرېږدئ، نو الله تعالی به پر تاسو ذلت مسلط کړي او دا به تر هغې پورې له تاسو نه پورته کېږي، چې تاسو جهاد لوري ته بېرته ګرځېدلي نه یاست.

---

(۱) صحیح البخاري، الایمان، باب حب الرسول من الایمان، حدیث: ۱۵.
(۲) سنن ابي داود، الجهاد، باب فی النهی عن العینة، حدیث: ۲۹۵۶.

# ۶۱- له مور او پلار سره نېک چلن

ګرانه وروره !

الله تعالی مونږ ته له خپل مور او پلار سره د نېک چلن حکم کړی دی او له مور او پلار سره يې بد چلن حرام ګرځولی دی. په دې اړه الله تعالی فرمايي:

﴿ وَ قَضٰى رَبُّكَ اَلَّا تَعْبُدُوْۤا اِلَّاۤ اِيَّاهُ وَ بِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا ؕ اِمَّا يَبْلُغَنَّ عِنْدَكَ الْكِبَرَ اَحَدُهُمَاۤ اَوْ كِلٰهُمَا فَلَا تَقُلْ لَّهُمَاۤ اُفٍّ وَّ لَا تَنْهَرْهُمَا وَ قُلْ لَّهُمَا قَوْلًا كَرِيْمًا ۝ وَ اخْفِضْ لَهُمَا جَنَاحَ الذُّلِّ مِنَ الرَّحْمَةِ وَ قُلْ رَّبِّ ارْحَمْهُمَا كَمَا رَبَّيٰنِيْ صَغِيْرًا ۝ ﴾.

( الاسراء : ۲۳ - ۲۴).

ژباړه: او ستا رب حکم کړی دی، چې له ده پرته د بل چا عبادت مه کوئ او له مور او پلار سره ښه سلوک وکړئ. که چېرې په دوی کې يو او يا دواړه بوډاوالي ته ورسېږي، نو هغوی ته د اف کلمه هم مه واياست او له دوی سره د تعظيم خبرې کوئ او د رحمت وزرې ورته وغوړوئ او (په دعاء کې) داسې واياست، چې ای پروردګاره ! په دوی دواړو رحم وکړه، لکه څنګه چې يې زما په کوچنيوالي پالنه کړې ده.

# ۶۲- له مور او پلار سره اړيکه پرې کول حرام دي

ابو بکره نفيع بن حارث رضي الله عنه څخه روايت دی،چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي :

أَلاَ أُنَبِّئُكُمْ بِأَكْبَرِ الْكَبَائِرِ؟ ثَلاَثًا قَالُوا بَلَى يَا رَسُولَ اللهِ! قَالَ: الإِشْرَاكُ بِاللهِ وَعُقُوقُ الْوَالِدَيْنِ وَكَانَ مُتَّكِئًا فَجَلَسَ فَقَالَ: أَلاَ وَقَوْلُ

الزُّورِ فَمَا زَالَ يُكَرِّرُهَا حَتَّى قُلْنَا لَيْتَهُ سَكَتَ.[۱]

ژباړه: ایا تاسو له سترې ګناه خبر نه کړم ؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم دا خبره درې ځلې تکرار کړه. صحابه کرامو عرض وکړ : ای د الله رسوله ! هو، ویې فرمایه. نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل :

- له الله تعالی سره شریک پیدا کول.

- له مور او پلار سره اړیکې پرې کول.

رسول الله صلی الله علیه وسلم تکیه وهلې وه، بیا یې ملا نېغه کړه او ویې فرمایل :

واورئ ! دروغ ویل او د دروغو ګواهي هم په کې شامله ده.

ابو بکر صدیق رضي الله عنه فرمایي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دا جملې تکرارولې، تر دې چې موږ وویل : افسوس ! که تاسو چپ پاتې شئ.

## ۶۳ - د جنت غوره دروازه

که الله تعالی مکړه، له تاسو څخه مور او پلار خپه شي، نو کوښښ وکړئ، چې بېرته یې راضي کړئ.

له ابو درداء رضي الله عنه څخه روایت دی، چې ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اورېدلي دي :

الوَالِدُ أَوْسَطُ أَبْوَابِ الجَنَّةِ، فَإِنْ شِئْتَ فَأَضِعْ ذَلِكَ البَابَ أَوْ احْفَظْهُ.[۲]

ژباړه: پلار د جنت له دروازو څخه یوه غوره دروازه ده، پس که څوک

(۱) صحیح البخاري، الشهادات، باب ما قیل فی الشهادة الزور، حدیث : ۲۶۵۴.

(۲) سنن ترمذي، ابواب البر والصلة، باب الفضل فی رضا، رضا الوالدین، حدیث : ۱۹۰۰.

غواړي چې دا دروازه ضایع کړي او که یې ساتنه کوي (خوښه یې خپله ده).

## ۶۴- د مور او پلار د ټولو ضرورتونو په پام کې نیول

زما ګرانه وروره!

ستاسو ټول مال ستاسو د پلار او مور دی، ځکه چې الله تعالی ستاسو پلار ستاسو د معاش جوګه وګرځاوه او په دې یې تاسو رالوی کړئ.

له ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

رَغِمَ أَنْفُ ثُمَّ رَغِمَ أَنْفُ ثُمَّ رَغِمَ أَنْفُ، مَنْ أَدْرَكَ وَالِدَيْهِ عِنْدَ الْكِبَرِ أَحَدَهُمَا أَوْ كِلَيْهِمَا فَلَمْ يَدْخُلِ الْجَنَّةَ.(۱)

ژباړه: پوزه دې خړه وي، پوزه دې په خاورو خړه وي، پوزه دې په خاورو خړه وي. چا پوښتنه وکړه: د چا ای رسول الله! ورته یې وفرمایل: د هغه چا چې په بوډاوالي کې له مور او پلار څخه او یا یو له دوی څخه یو تن مومي او (د دوی د خدمت له امله) جنت ته لاړ نه شي.

## ۶۵- له بد چلن سره سره

## بیا هم له خپلوانو سره د خپلوۍ تاکید

زما ګرانه وروره!

اسلامي شریعت د خپلوۍ قایمولو ډېر تاکید کړی دی. له ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

«مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَلْيَصِلْ رَحِمَهُ.(۲)

ژباړه: څوک چې په الله تعالی او د اخرت په ورځ ایمان لري، نو خپلوي

(۱) صحیح مسلم: البر والصلة، باب رغم انف من ادرك ابويه او احدهما، حديث: ۲۵۵۱.

(۲) صحیح البخاري: الادب، باب من كان يومن بالله....حديث: ۶۰۱۸.

دي قايمه کړي.

## ۶۶- د خلکو ترمنځ صلحه راوستل

زما ګرانه وروره!

په ټولنه کې شخړې، جوړجاړې او داسې نورې خبرې راځي، خو مسلمان باید په کې صلحه ولټوي او هیڅوک د شخړې دوام ته پرینږدي. له ابو عباس سهل بن سعد ساعدي رضي الله عنه څخه روایت دی:

أَنَّ رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم بَلَغَهُ أَنَّ بَنِي عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ كَانَ بَيْنَهُمْ شَر فَخَرَجَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم يُصْلِحُ بَيْنَهُمْ فِي أُنَاسٍ مَعَهُ.[1]

ژباړه: بنو عمرو بن عوف یوه ستره قبیله وه، چې څه کورنۍ هم په کې داسې وې، چې قباء سره نږدې اوسېدې. د دوی ترمنځ په یو شي کې لانجه راغله. کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم له دې خبر شو، نو له خلکو سره هلته د صلحې لپاره ولاړ.

## ۶۷- له ګاونډي سره ښه چلن او د هغه حق

ګرانه وروره!

الله تعالی ته د نږدې کېدو یوه لاره دا هم ده، چې له خپل ګاونډي سره نېک سلوک وکړئ، ځکه چې مسلمانان سره د یو بدن په څېر دي. له ابو شریح خزاعي رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

(۱) صحیح البخاري، الاذان، باب من دخل... حدیث : ۶۸۴.

مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَلْيُحْسِنْ الى جَارِه.(۱)

ژباړه: څوک چې په الله تعالی اود اخرت په ورځ ایمان لري، نو له ګاونډي سره دې ښه چلن وکړي.

همدارنګه په بل حدیث کې فرمایي:

يَا نِسَاءَ الْمُسْلِمَاتِ! لاَ تَحْقِرَنَّ جَارَةٌ لِجَارَتِهَا وَلَوْ فِرْسَنَ شَاةٍ.(۲)

ای مسلمانانو ښځو! هیڅ یو ګاونډي دې د بل ګاونډي ډالۍ او هدیه سپکه نه بولي، اګر چې هغه د وزې بچی هم وي.

## ۶۸- ښه اخلاق

ګرانه وروره!

باید له خلکو سره په ښو اخلاقو مخ شئ، ځکه چې دا د یو مسلمان غوره صفت دی. په دې اړه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

مَا مِنْ شَيْءٍ يُوْضَعُ فِي الْمِيزَانِ أَثْقَلُ مِنْ حُسْنِ الْخُلُقِ.(۳)

ژباړه: د بنده د میزان په تله کې به دده له اخلاقو نور څه درانده نه وي.

همدارنګه په یو بل حدیث کې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

إِنَّ مِنْ أَحَبِّكُمْ إِلَيَّ وَأَقْرَبِكُمْ مِنِّي مَجْلِسًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَحَاسِنَكُمْ أَخْلاَقًا، وَإِنَّ مِنْ أَبْغَضِكُمْ إِلَيَّ وَأَبْعَدِكُمْ مِنِّي مَجْلِسًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ الثَّرْثَارُونَ وَالمُتَشَدِّقُونَ وَالمُتَفَيْهِقُونَ.(۴)

ژباړه: د قیامت په ورځ به ماته هغه څوک ډېر نږدې او محبوب وي، چې د

---

(۱) صحيح البخاري، الادب، باب من كان يومن........ حديث: ۶۰۱۹.

(۲) صحيح البخاري: اوائل كتاب الهبة، حديث ۲۵۶۶.

(۳) سنن ابو داود: السنة، باب في حسن الخلق، حديث: ۴۷۹۹.

(۴) سنن الترمذي، ابواب البر والصلة، حديث: ۲۰۱۸.

ښو اخلاقو خاوند وي، او په تاسو کې به د قیامت په ورځ هغه څوک له ما څخه لرې او ناخوښه وي، چې ډېرې بې ځایه خبرې کوي، په ریاکارۍ خبرې کوي او په تکبر خبرې کوي.

## ۶۹- د مېلمه پالنې تاکید

له ابو شریح خویلد بن عمرو خزاعي رضي الله عنه څخه روایت دی، چې ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اورېدلي دي:

مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهُ جَائِزَتَهُ قَالُوا وَمَا جَائِزَتُهُ يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ يَوْمه وَلَيْلَةٌ وَالضِّيَافَةُ ثَلاَثَةُ أَيَّامٍ فَمَا كَانَ وَرَاءَ ذَلِكَ فَهْوَ صَدَقَةٌ عَلَيْه.(۱)

ژباړه: څوک چې په الله تعالی او د اخرت په ورځ ایمان لري،نو هغه دې د خپل مېلمه مېلمستیا کوي او د هغه حق دې اداء کړي. صحابه کرامو عرض وکړ: ای رسول الله! د مېلمه حق کوم دی؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: یوه ورځ او شپه (د خپل توان په اندازه ورته ښه خواره برابرول) او مېلمه پالنه یې تر درېو ورځو پورې ده، له دې وروسته په صدقه کې شمېرل کېږي.

---

(۱) صحیح البخاري، الادب، باب اکرام الضیف وخدمته ایاه بنفسه، حدیث: ۶۱۳۵.

# ۷۰ - غرور او لويي حرامه ده

ګرانه وروره!

خپل ځان د کوم مسلمان شخه غوره او لوی مه بولئ، اګر که له تاسو سره ډېر مال هم وي، کېدای شي چې هغه له تاسو غوره وي.

الله تعالی فرمايي:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنَّا خَلَقۡنَٰكُم مِّن ذَكَرٖ وَأُنثَىٰ وَجَعَلۡنَٰكُمۡ شُعُوبٗا وَقَبَآئِلَ لِتَعَارَفُوٓاْۚ إِنَّ أَكۡرَمَكُمۡ عِندَ ٱللَّهِ أَتۡقَىٰكُمۡۚ إِنَّ ٱللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٞ ﴾.

(الحجرات : ۱۳).

ژباړه: ای انسانانو! تاسو مو له نارينه او ښځينه جنس شخه پيدا کړي ياست او ددې لپاره مو په قومونو ويشلي ياست، يو بل وپېژنئ. په تاسو کې الله تعالی ته پرهېزګاره شخص غوره دی، بې شکه الله تعالی پوه او خبردار ذات دی.

له عبدالله بن مسعود رضي الله عنه شخه روايت دی، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل:

لاَ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ مِنْ كِبْرٍ.[1]

ژباړه: هغه شخص به جنت ته داخل نه شي، چې د چا په زړه کې د ذرې هومره کبر وي.

(۱) صحيح مسلم، الايمان، باب تحريم الكبر وبيانه، حديث : ۹۱.

# ۷۱-له نېکانو سره ناسته او له بدکارو څخه د ډډې کولو تلقین

ګرانه وروره!

لکه څرنګه چې د یو سالم بدن لپاره پاکې غذا، پاکې هوا او پاک چاپېریال ته اړتیا ده، په دې ډول د نېک انسان په ملګرتیا کې انسان خپله نېک ګرځي.

له ابو موسیٰ اشعري رضي الله عنه څخه روایت دی، چې بې شکه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

إِنمَّا مَثَلُ الْجَلِيسِ الصَّالِحِ وَجَلِيْسِ السَّوْءِ كَحَامِلِ الْمِسْكِ وَنَافِخِ الْكِيرِ فَحَامِلُ الْمِسْكِ إِمَّا أَنْ يُحْذِيَكَ وَإِمَّا أَنْ تَبْتَاعَ مِنْهُ وَإِمَّا أَنْ تَجِدَ مِنْهُ رِيحًا طَيِّبَةً وَنَافِخُ الْكِيرِ إِمَّا أَنْ يُحْرِقَ ثِيَابَكَ وَإِمَّا أَنْ تَجِدَ رِيحًا خَبِيثَةً.[1]

ژباړه: د نېک او بد ملګري مثال د مشکو د پورته کوونکي او بټۍ (لکه د خښتو) د اور ګرموونکي په څېر دی، چې د مشکو والا به یا تاته ډالۍ درکړي او یا به یې ته له هغه څخه واخلې او یا به دا وکړې، چې خوشبو به ترې حاصله کړې، او د بټۍ د اور بلوونکی به یا ستا جامې وسېزي او یا به ترې بد بوی واخلې.

همدارنګه په بل حدیث کې فرمايي:

الْمَرْءُ عَلَى دِينِ خَلِيلِهِ فَلْيَنْظُرْ أَحَدُكُمْ مَنْ يُخَالِلُ.[2]

ژباړه: یو سړی د خپل ملګري په دین وي، هر څوک دې وګوري چې له چا

---

(۱) صحيح البخاري، الذبائح، باب المسك، حديث : ۵۵۳۴.

(۲) سنن ابي داود، الادب، باب من يومر ان يجالس ؟ حديث : ۴۸۳۳

سره ملګرتیا کوي.

## ۷۲ - د سلام فضیلت او د عامولو حکم یې

ګرانه وروره !

هر پېژندلي شخص او ناپېژندلي ته سلام کوئ، چې له دې سره په خپل منځ کې مینه پیدا کېږي او نفرت له زړونو وځي.

له ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

لَاتَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ حَتَّى تُؤْمِنُوا وَلاَ تُؤْمِنُوا حَتَّى تَحَابُّوا، أَوَلاَ أَدُلُّكُمْ عَلَى شَيْءٍ إِذَا فَعَلْتُمُوهُ تَحَابَبْتُمْ أَفْشُوا السَّلاَمَ بَيْنَكُمْ.(۱)

ژباړه: تاسو جنت ته نه شئ تلی، ترڅو مو چې ایمان نه وي راوړی، او تاسو مومنان ګرځېدای نه شئ، ترڅو چې له یو بل سره مینه ونه کړئ. ایا داسې څه درته ونه ښایم، چې هغه کله غوره کړئ، نو مینه به مو سره وي؟ (هغه دا دی چې) په خپل منځ کې سلام عام کړئ.

په بل حدیث کې راغلي دي:

أَيُّهَا النَّاسُ! أَفْشُوا السَّلَامَ، وَأَطْعِمُوا الطَّعَامَ،وَصِلوُا الارحَامَ، وَصَلُّوا وَالنَّاسُ نِيَامٌ تَدْخُلُونَ الجَنَّةَ بِسَلَامٍ.(۲)

ژباړه: ای خلکو ! سلام په خپل منځ کې عام کړئ، خلکو ته خواړه ورکړئ، خپلوي قایمه کړئ او په داسې حالت کې لمونځ کوئ، چې خلک ویده وي (د تهجد لمونځ کوئ ) نو جنت ته به په سلامتیې داخل شئ.

---

(۱) صحیح مسلم، الایمان، باب بیان انه لایدخل الجنة الاالمومنون، حدیث : ۵۴.

(۲) صحیح سنن الترمذي، ابواب الاطعمة، باب ما جاء فی فضل الطعام الطعام، حدیث : ۲۴۸۵

## ۷۳ - کافر ته په سلام کې مخکېوالی نه کول او هغوی ته د ځواب ورکولو طریقه

له انس بن مالک رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

إِذَا سَلَّمَ عَلَيْكُمْ أَهْلُ الْكِتَابِ فَقُولُوا وَعَلَيْكُمْ.(۱)

ژباړه: کله چې پر تاسو اهل کتاب سلام واچوي، نو تاسو ورته یوازې وَعَلَيْكُمْ ووایئ.

په بل ځای کې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي، چې تاسو په یهودو او نصاراو په سلام کې مه مخکې کېږئ، کله چې درته په مخه درشي، نو هغوی دې ته اړباسئ، چې د لارې په تنګه برخه ولاړ شي.

## ۷۴ - د لارې څخه ضرري شیان لرې کول

درنو ځوانانو!

الله تعالی دا کار ډېر خوښوي، چې یو مسلمان له لارې څخه هغه شیان لرې کړي، چې خلکو ته پرې ضرر رسېږي. او دا جنت ته د تلو له اسبابو یو سبب هم دی.

له ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

لَقَدْ رَأَيْتُ رَجُلاً يَتَقَلَّبُ فِي الْجَنَّةِ فِي شَجَرَةٍ قَطَعَهَا مِنْ ظَهْرِ الطَّرِيقِ كَانَتْ تُؤْذِي النَّاسَ.(۲)

---

(۱) صحیح البخاري، الاستئذان، باب کیف یرد علی اهل الذمة السلام، حدیث: ۶۲۵۸.

(۲) صحیح مسلم، البر، باب فضل ازالة الاذیٰ عن الطریق، حدیث: ۱۹۱۴.

ژباړه: ما په جنت کې یو تن ولیده، چې ګرځېده په کې هغه، هغه ونه له لارې پرې کړه، چې د لارې په منځ کې وه او خلکو ته پرې ضرر رسېده (د ده دا عمل الله تعالی قبول کړ).

## ۷۵ - د نجومیانو بد کارونه

درنو ورونو!

ډېری خلک چې نجومیانو ته ځي، ددې لپاره، چې څه مشکل ورته وي، هغه ترې لرې کړي. هغوی هم په څه جادو ورته داسې شیان وکړي، چې دا معصوم خلک پرې ګمراه کړي، نو له داسې شیانو ځان وساتئ.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

مَنْ أَتَى كَاهِنًا فَصَدَّقَهُ بِمَا يَقُولُ فَقَدْ كَفَرَ بِمَا أُنْزِلَ عَلَى مُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.(۱)

ژباړه: څوک چې یو کاهن جادوګر ته ولاړ او د هغه پر خبرو یې باور وکړ، نو هغه په هغه څه کفر وکړ، چې په محمد صلی الله علیه وسلم نازل شوی وي.

په بل حدیث کې راغلي دي:

«مَنْ أَتَى عَرَّافًا فَسَأَلَهُ عَنْ شَيْءٍ لَمْ تُقْبَلْ لَهُ صَلاَةٌ أَرْبَعِينَ يَوْمًا.(۲)

ژباړه: څوک چې کوم نجومي ته ورغی او له هغه څخه یې د کوم شي په اړه پوښتنه وکړه، نو د هغه تر څلوېښتو ورځو پورې لمونځ نه قبلېږي.

---

(۱) مسند احمد: ۲ \ ۴۲۹.

(۲) صحیح مسلم، ۴ \ ۱۷۵۱.

## ۷۶- له جادو کولو او جادوګر څخه په بشپړ ډول نجات

که چېرې وکتل شي، نو د محمدي امت ډېری خلک داسې دي، چې په متونو پورې به یې تعویذونه تړلي وي او په دې عقیده وي، چې دا به ورته له ناروغیو نجات ورکړي.

راځئ، چې د قران او احادیثو په رڼا کې له ناروغیو نجات ومومو.

په صحیح بخاري کې راغلي دي، چې د عربو د یوې قبیلې سردار مار وچیچه او ابو سعید خدري رضي الله عنه په سورة فاتحه دم کړ، نو الله تعالی ورته شفا ورکړه. کله چې هغه روغ شو، نو هغه ته یې به بدل کې وزې ورکړې.

**اية الکرسي:**

له ابو امامة رضي الله عنه څخه روایت دی، چې ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اورېدلي دي:

مَنْ قَرَأَ آيَةَ الْكُرْسِيِّ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ لَمْ يَمْنَعْهُ مِنْ دُخُولِ الْجَنَّةِ إِلَّا أَنْ يَمُوتَ.[1]

ژباړه: څوک چې له هر لمانځه وروسته ایت الکرسي ووایي، نو له جنت څخه یې له مرګ پرته بل شی نه شي ایسارولای.

همدارنګه باید معوذتین او سورت بقره ولوستل شي، چې انسان پرې له پېریانو نجات ومومي.

همدارنګه په یو حدیث کې راغلي، چې څوک سهار اووه داني د عجوه خرما وخوري، نو زهر او جادو به پرې اغېزه ونه کړي.

(۱) نسايي.

# ۷۷- د زنا او د هغې د اسبابو حرمت

زنا په اسلام کې يوه ستره ګناه ده، دومره سخته ګناه ده، چې که څوک مړوخې ښځې سره زنا وکړي، نو د هغې د ژوندي پاتې کېدو هېڅ امکان نه شته.

الله تعالی په دې اړه فرمايي:

﴿ وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنَىٰٓ إِنَّهُۥ كَانَ فَاحِشَةً وَسَآءَ سَبِيلًا ﴾. (الاسراء: ۳۲).

ژباړه: او زنا ته مه نږدې کېږئ، ځکه چې دا يوه بې حيايي او بده لاره ده.

له سهل بن سعد رضي الله عنه څخه روايت دی، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي:

مَنْ يَضْمَنْ لِي مَا بَيْنَ لَحْيَيْهِ وَمَا بَيْنَ رِجْلَيْهِ أَضْمَنْ لَهُ الْجَنَّةَ.[1]

څوک چې ما ته د دوو ژامو (ژبې) او هغه چې د دوو پښو په منځ کې دي (عورت)، ضمانت راکړي، نو زه ورته د جنت ضمانت ورکوم.

په بل حديث کې راځي:

فَانْطَلَقْنَا، فَأَتَيْنَا عَلَى مِثْلِ التَّنُّورِ، فَإِذَا فِيهِ لَغَطٌ وَأَصْوَاتٌ فَاطَّلَعْنَا فِيهِ، فَإِذَا فِيهِ رِجَالٌ وَنِسَاءٌ عُرَاةٌ، وَإِذَا هُمْ يَأْتِيهِمْ لَهَبٌ مِنْ أَسْفَلَ مِنْهُمْ، فَإِذَا أَتَاهُمْ ذَلِكَ اللَّهَبُ ضَوْضَوْا، قَالَ: قُلْتُ لَهُمَا: مَا هَؤُلَاءِ؟ قَالَ: قَالَا لِي: هُمُ الزُّنَاةَ وَالزَّوَانِي.[2]

ژباړه: د معراج په شپه مې څه ښځې او سړي د تنور په څېر شي کې وليده، هغوی په زوره چغې وهلې، چې له لاندې يې اور اخيسته او په زور سره اور

(۱) صحيح البخاري، کتاب الرقاق، باب حفظ اللسان، حديث: ۶۴۷۴.

(۲) صحيح البخاري، کتاب التعبير، باب تعبير الرؤيا بعد الصبح، حديث: ۷۰۴۷.

پورته کېده، ددوی فرج یې سېزه او دوی به چغې وهلې ما پوښتنه وکړه: دوی څوک دي؟ هغوی (جبریل او میکایل) راته وفرمایل: دوی زنا کار سړي او زناکارې ښځې دي.

## ۷۸- په لاس سره د زنا کولو حرمت

استمناء او موټک (په لاس سره مني ویستل) په اسلامي شریعت کې حرام دي. په دې اړه الله تعالی فرمایلي دي:

﴿وَ الَّذِيْنَ هُمْ لِفُرُوْجِهِمْ حٰفِظُوْنَ ۝ اِلَّا عَلٰٓى اَزْوَاجِهِمْ اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ فَاِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُوْمِيْنَ ۝ فَمَنِ ابْتَغٰى وَرَآءَ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْعٰدُوْنَ ۝﴾.

(المومنون: ۵- ۷).

ژباړه: مؤمنان د خپل عورت څخه ساتنه کوي، پرته له خپلې ښځې او وینځې څخه، چې په دې کې دوی ملامته نه دي. خو که څوک له دې پرته بله لاره غوره کوي، نو داسې خلک زیاتي کوونکي دي.

په پورته ایت مبارک کې الله تعالی د زنا څخه مومنان منعه کړي او دا یې یو بې حیا کار بللی دی.

## ۷۹- د چا چې توان وي، نو ژر تر ژره دې واده وکړي

ګرانه وروره!

اسلام یو ډېر معتدله دین دی، چې په دې کې د هر چا حقوق خوندي دي، ددې په مقابل کې په کوم بل دین کې دا ډول حقوق نه شته رسول الله صلی الله علیه وسلم د خپل امت ځوانانو ته ډېره ښه لاره ښودلې ده:

يَا مَعْشَرَ الشَّبَابِ! مَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمُ الْبَاءَةَ فَلْيَتَزَوَّجْ فَإِنَّهُ أَغَضُّ لِلْبَصَرِ وَأَحْصَنُ لِلْفَرْجِ وَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَعَلَيْهِ بِالصَّوْمِ فَإِنَّهُ لَهُ

وِجَاءٌ.(۱)

ژباړه: ای دځوانانو ټولیه ! څوک چې په تاسو کې د باءة (د روغ بدن او د ښځې دخوراک پوشاک) توان په ځان کې لري، نو هغه دې نکاح وکړي، ځکه چې نکاح سترګې لاندې ساتي او د عورت ساتنه کوي او څوک چې ددې توان نه لري، نو هغه دې روژې ونیسي، ځکه چې روژه دده خواهش له منځه وړي.

## ۸۰ - د زړه ناروغي

په روحاني توګه د زړه ناروغی له پنځه شیانو پیدا کېږي، نو له دې څخه د ژغورنې لپاره هر ډول کوښښ وکړئ:

- د بدکاره ملګرو زیاتوالی.
- اوږدې هیلې.
- له الله تعالی پرته له نورو شیانو سره د زړه لګېدل.
- په مړه ګېډه خوراک.
- ډېر خوب کول.

له ابو عبدالله نعمان بن بشیر رضي الله عنه څخه روایت دی، چې ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اورېدلي دي:

أَلاَ وَإِنَّ فِي الْجَسَدِ مُضْغَةً إِذَا صَلَحَتْ صَلَحَ الْجَسَدُ كُلُّهُ، وَإِذَا فَسَدَتْ فَسَدَ الْجَسَدُ كُلُّهُ أَلاَ وَهِيَ الْقَلْبُ.(۲)

خبردار ! په بدن کې د غوښې یوه ټوټه ده، که چېرې هغه ښه وي، نو ټول بدن ښه دی او که چېرې هغه ښه نه وي، نو ټول بدن بېکاره دی. خبردار !

---

(۱) صحیح مسلم، النکاح، استجاب النکاح لمن تاقت الیه نفسه، حدیث : ۱۴۰۰.

(۲) صحیح البخاري، الایمان، باب فضل من استبرا دینه، حدیث : ۲۰۵۱.

هغه زړه دی.

## ۸۱- له پردۍ ښځې او بې ږیرې ښایسته هلک سره یواځې کېناستل حرام دي

شیطان تل کوښښ کوي، چې انسان د الله تعالی له لارې وغورځوي، الله تعالی موږ ته په دې اړه خبر راکړی دی او فرمايي:

﴿ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّبِعُوا خُطُوَاتِ الشَّيْطَانِ ۚ وَمَنْ يَتَّبِعْ خُطُوَاتِ الشَّيْطَانِ فَإِنَّهُ يَأْمُرُ بِالْفَحْشَاءِ وَالْمُنْكَرِ ۚ ﴾. (النور : ۲۱)

ژباړه: ای مومنانو! د شیطان په لاره مه ځئ او څوک چې د شیطان په لاره ځي، نو هغه خو تاسو ته د بدو کارونو حکم کوي.

په یو حدیث کې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

لَا يَنْظُرُ الرَّجُلُ إِلَى عَوْرَةِ الرَّجُلِ وَلاَ الْمَرْأَةُ إِلَى عَوْرَةِ الْمَرْأَةِ وَلاَ يُفْضِي الرَّجُلُ إِلَى الرَّجُلِ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ وَلاَ تُفْضِي الْمَرْأَةُ إِلَى الْمَرْأَةِ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ.[1]

ژباړه: نارینه دې د نارینه عورت ته نه ګوري او ښځه دې د ښځې عورت ته نه ګوري، او نه دې نارینه له نارینه سره په لوڅ ډول په یو څادر کې څملي او نه دې ښځه له ښځې سره په لوڅه په یوه څادر کې څملي.

(۱) صحیح مسلم، الحیض، تحریم النظر الی العورات، حدیث : ۳۳۸.

## ۸۲ - د مخلوطې زده کړې ناوړه اغېزې

ای ځوانه نسله !

که تاسو فکر وکړئ، چې ولې مخلوطه زده کړه کېږي، ایا دا روا شکل دی او که نا روا؟ له دې سره حیا له منځه ځي او تر دې چې عورت هم په کې ښکاره کېږي، انجونې هم کومه پروا نه لري او سر سرتورې ګرځي.

الله تعالې دې موږ له دې کاره وساتي. امین

## ۸۳ - مقابل لوري ته د شهوت په نظر کتل

اسلام دا خبره هم ناروا بللې، چې ښځې دې خپلې سترګې نارینه و ته واړوي او یا دې نارینه خپل نظر ښځو ته واړوي. الله تعالی د مومنانو لپاره دا حکم رالېږلی دی:

﴿ قُلْ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ يَغُضُّوْا مِنْ اَبْصَارِهِمْ وَ يَحْفَظُوْا فُرُوْجَهُمْ ذٰلِكَ اَزْكٰى لَهُمْ اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌۢ بِمَا يَصْنَعُوْنَ۝ وَ قُلْ لِّلْمُؤْمِنٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ وَ يَحْفَظْنَ فُرُوْجَهُنَّ ﴾. (النور: ۳۰- ۳۱)

ژباړه: ای پیغمبره ! مومنانو ته ووایه، چې خپل نظرونه لاندې وساتي او د خپل عورت ساتنه وکړي، دا د هغوی په حق کې ډېره پاکه خبره ده بې شکه څه چې خلک کوي، الله تعالی له هغې څخه خبر دی. او مومنانو ښځو ته هم ووایاست، چې هغوی هم خپل نظرونه لاندې وساتي او د خپل عورت ساتنه وکړي.

جریر رضي الله عنه له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه د ناڅاپه نظر په اړه پوښتنه وکړه، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم و رته د نظر اړولو حکم وکړ.

# ۸۴ - له نامحرمو ښځو سره ستړي مه شي

په دې زمانه کې نامحرمو ښځو ته لاس ورکول هم یو رواج ګرځېدلی دی.
رسول الله صلی الله علیه و سلم فرمایي:

كُتِبَ عَلَى ابْنِ آدَمَ نَصِيبُهُ مِنَ الزِّنَا، مُدْرِكٌ ذَلِكَ لَا مَحَالَةَ، فَالْعَيْنَانِ زِنَاهُمَا النَّظَرُ، وَالْأُذُنَانِ زِنَاهُمَا الِاسْتِمَاعُ، وَاللِّسَانُ زِنَاهُ الْكَلَامُ، وَالْيَدُ زِنَاهَا الْبَطْشُ، وَالرِّجْلُ زِنَاهَا الْخُطَا، وَالْقَلْبُ يَهْوَى وَيَتَمَنَّى، وَيُصَدِّقُ ذَلِكَ الْفَرْجُ وَيُكَذِّبُهُ.(۱)

ژباړه: د بني ادم لپاره د هغه زنا د کولو يوه برخه ليکل شوې ده، چې بې شکه هغه به يې مومي د سترګو زنا (پردو ښځو ته) کتل دي، د غوږونو زنا (د ناروا غږونو) اورېدل دي، د ژبې زنا (د ناروا خبرو) ويل دي، د لاس زنا (دناروا شيانو) نيول دي، د پښو زنا (هغې پسې) تلل دي، زړه يې هيله او ارزو کوي او شرمګاه يې تصديق او تکذيب کوي.

په يو بل حديث کې راغلي دي:
رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

إِنِّي لَا أُصَافِحُ النِّسَاءَ.(۲)

ژباړه: چې زه له ښځو سره مصافحه نه کوم.

(۱) صحيح البخاري، الاستيذان، زنا الجوارح، حديث: ۶۲۴۳.
(۲) المعجم الكبير للطبراني: ۲۴ \ ۳۴۲.

## ۸۵ - عاجزي او له مومنانو سره په نرمۍ مخ کېدل

الله تعالی فرمایي:

﴿وَ اخۡفِضۡ جَنَاحَكَ لِمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ﴾ (الشعراء: ۲۱۵)

ژباړه: کوم مومنان چې ستا پیروان دي، نو له هغوی سره په ډېره نرمۍ مخ کېږه.

له ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

مَا تَوَاضَعَ أَحَدٌ لِلَّهِ إِلَّا رَفَعَهُ اللَّهُ.[۱]

ژباړه: څوک چې یوازې د الله تعالی په خاطر عاجزي کوي، نو الله تعالی د هغه درجه لوړوي.

## ۸۶ - له ښنګرو لاندې جامې ځوړندې ساتل

ګرانو ځوانانو!

تل کوښښ وکړئ، چې پرتوګ مو له ښنګرو پورته وساتئ، که تاسو په لمانځه کې یاست او که له لمانځه پرته. ځکه چې دا کار (د ښنګرو نه لاندې جامې ساتل) اسلامي شریعت منعه کړی دی.

له ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

مَا أَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ مِنَ الإِزَارِ فَفِي النَّارِ.[۲]

ژباړه: کومه برخه د پرتوګ چې د ښنګرو لاندې وي، نو هغه به په اور کې

---

(۱) صحیح مسلم، البر، باب استحباب العفو والتواضع حدیث: ۲۵۸۸.

(۲) صحیح البخاري، اللباس، باب ما اسفل من الکعبین من الازار ففی النار، حدیث: ۵۷۸۷.

وي.

همدارنګه په بل حدیث کې فرمايي:

ثَلاَثَةٌ لاَ يُكَلِّمُهُمُ اللّٰهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلاَ يَنْظُرُ إِلَيْهِمْ وَلاَ يُزَكِّيهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ، قَالَ: فَقَرَأَهَا ثَلاَثَ مِرَارٍ. قَالَ أَبُو ذَرٍّ خَابُوا وَخَسِرُوا مَنْ هُمْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ: الْمُسْبِلُ وَالْمَنَّانُ وَالْمُنَفِّقُ سِلْعَتَهُ بِالْحَلِفِ الْكَاذِبِ.[1]

ژباړه: درې کسان داسې دي، چې الله تعالی به ورسره د قیامت په ورځ خبرې نه کوي او نه به ورته د رحمت په نظر ګوري، نه به يې له ګناهونو پاکوي او د هغوی لپاره به دردوونکی عذاب وي. ابو ذر رضي الله عنه فرمايي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم درې ځلې دا کلمې تکرار کړې، نو ما ورته ووېل: دا نامراده او تاواني څوک دي، ای د الله رسوله! راته يې وفرمايل:

هغه څوک چې له ښنګرو لاندې پېښې ساتي

هغه څوک چې له چا سره نېکي وکړي او بيا يې ورته يادوي.

هغه څوک چې د دروغو په قسم خوړلو خپل مال خرڅوي.

(١) صحيح مسلم، الايمان، بيان غلظ تحريم واسبال الازار والمن.. حديث: ١٠٦.

## ۸۷ - له شیطان او کفارو سره ورته والی او مشابهت

په دې اړه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

لَا يَأْكُلَنَّ أَحَدُكُمْ بِشِمَالِهِ وَلاَ يَشْرَبَنَّ بِهَا فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَأْكُلُ بِشِمَالِهِ وَيَشْرَبُ بِهَا.(۱)

ژباړه: په تاسو کې دې هېڅوک په کيڼ لاس نه څه خوري او نه دې څه څښي، بې شکه شیطان په کيڼ لاس خوراک هم کوي او څښاک هم

په بل حدیث کې راځي:

المَرْءُ مَعَ مَنْ أَحَبَّ.(۲)

ژباړه: څوک چې په دنیا کې له چاسره مینه لري، په اخرت کې به له هغه سره وي.

## ۸۸ - په لباس او داسې نورو شیانو کې د نارینه و له ښځو سره مشابهت

رسول الله صلی الله علیه وسلم په دې اړه فرمايي:

لَعَنَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم الْمُتَشَبِّهِينَ مِنَ الرِّجَالِ بِالنِّسَاءِ وَالْمُتَشَبِّهَاتِ مِنَ النِّسَاءِ بِالرِّجَالِ.(۳)

ژباړه: رسول الله صلی الله علیه وسلم په هغو ښځو لعنت کړی دی،چې له نارينه سره ځان مشابه کوي او په هغو سړيو هم، چې ځان له ښځو سره

(۱) صحیح مسلم: الاشربة، اداب الطعام والشراب واحكامها، حديث : ۲۰۲۰
(۲) صحيح البخاري: الادب، باب علامة الحب فی الله، حديث : ۶۱۶۹
(۳) صحيح البخاري: الحدود، نفی اهل المعاصي والمخنثين،حديث : ۶۸۳۴ .

مشابه کوي.

## ۸۹ - سړو ته روا نه دي، چې په وربښمو کېني، هغه واغوندي او یا پرې تکیه ووهي

په دې اړه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

لَا تَلْبَسُوا الْحَرِيرَ، فَإِنَّ مَنْ لَبِسَهُ فِي الدُّنْيَا لَمْ يَلْبَسْهُ فِي الْآخِرَةِ.[۱]

ژباړه: وربښم مه اغوندئ! څوک نارینه یې چې په دې دنیا کې واغوندي، نو په اخرت کې به ورته نه اغوستل کېږي.

له انس رضي الله عنه څخه روایت دی:

رَخَّصَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم لِلزُّبَيْرِ وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بن عوف فِي لُبْسِ الْحَرِيرِ لِحِكَّةٍ بِهِمَا.[۲]

ژباړه: رسول الله صلی الله علیه وسلم زبیر او عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنهما ته اجازه ورکړې وه، چې وربښم واغوندي، ځکه چې په هغوی خارښت و.

(۱) صحيح البخاري: اللباس، لبس الحرير...... حديث: ۵۸۲۸.

(۲) صحيح البخاري، اللباس، باب ما يرخص من الحرير للحكة، حديث: ۵۸۳۹.

# ۹۰- د نارینه لپاره د سرو زرو د استعمال ممانعت

ګرانو ځوانانو!

الله تعالی ښایست په اسلام کې یو ضروري شی ګڼلی دی. الله تعالی په دې اړه فرمایي:

﴿قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِينَةَ اللَّهِ الَّتِي أَخْرَجَ لِعِبَادِهِ وَالطَّيِّبَاتِ مِنَ الرِّزْقِ﴾.

(الاعراف: ۳۲)

ژباړه: له دوی څخه پوښتنه وکړئ، چې هغه ښکلا او پاک شیان چې الله تعالی د خپلو بنده ګانو لپاره حلال کړي وو، چا حرام کړه؟

په بل ځای کې یې د ښکلا په شیانو کې سره زر پر نارینه و حرام ګرځولي دي:

له ابو موسیٰ اشعري رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

حُرِّمَ لِبَاسُ الحَرِيرِ وَالذَّهَبِ عَلَى ذُكُورِ أُمَّتِي وَأُحِلَّ لِإِنَاثِهِمْ.(۱)

ژباړه: د وریښمو جامې او سره زر زما د امت د نارینه و لپاره حرام او د دوی د ښځو لپاره حلال دي.

له عبدالله بن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د یو تن په ګوته د سرو زرو ګوتمه ولیده، نو هغه یې ترې وغورځوله او ورته یې وفرمایل:

«يَعْمِدُ أَحَدُكُمْ إِلَى جَمْرَةٍ مِنْ نَارٍ فَيَجْعَلُهَا فِي يَدِهِ فَقِيلَ لِلرَّجُلِ بَعْدَ مَا ذَهَبَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- خُذْ خَاتَمَكَ انْتَفِعْ بِهِ.

---

(۱) سنن الترمذي: ابواب اللباس، باب ما جاء في الحرير والذهب، حديث: ۱۷۲۰.

قَالَ لاَ وَاللهِ لاَ آخُذُهُ أَبَدًا وَقَدْ طَرَحَهُ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم.[۱]

ژباړه: په تاسو کې خلک د اور انګار اراده کوي چې په خپل لاس کې يې ونيسي (يعنې ته غواړې، چې په خپل لاس کې انګار ونيسې؟)، کله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم لاړ، نو دې سړي ته چا وويل: خپله ګوتمه دې واخله او له هغې ګټه پورته کړه، هغه ورته په ځواب کې وويل: نه، په الله قسم! زه به دا ګوتمه هېڅکله پورته نه کړم، په داسې حال کې چې رسول الله صلى الله عليه وسلم غورځولې ده.

## ۹۱ - د نشه يي توکو د خښاک شرعي حکم

﴿وَ لَا تُلْقُوْا بِاَيْدِيْكُمْ اِلَى التَّهْلُكَةِ﴾. (البقرة : ۱۹۵)

ژباړه: تاسو ځانونه د هلاکت کندې ته مه غورځوئ.

په بل ايت کې فرمايي:

﴿وَ لَا تُبَذِّرْ تَبْذِيْرًا ۝ اِنَّ الْمُبَذِّرِيْنَ كَانُوْٓا اِخْوَانَ الشَّيٰطِيْنِ ؕ وَ كَانَ الشَّيْطٰنُ لِرَبِّهٖ كَفُوْرًا ۝﴾. (الاسراء : ۲۶ - ۲۷)

ژباړه: او بې ځايه لګښت مه کوئ، ځکه چې بې ځايه لګښت کوونکي د شيطان ورونه دي او شيطان د الله تعالى ناشکره دی.

په يو حديث کې راغلي:

لاَ ضَرَرَ وَلاَ ضِرَارَ.[۲]

ژباړه: مه تاسو چا ته زيان رسوئ او نه دې تاسو ته څوک زيان رسوي.

(۱) صحيح مسلم: اللباس، تحريم خاتم الذهب على الرجل، حديث : ۲۰۹۰.

(۲) سنن دار قطني، ۳ \ ۷۷.

# ۹۲ - شراب څښل

اسلام له شرابو سره په قطعي ډول په جنګ کې دی او مسلمانان یې له دې شخه منع کړي دي، نه یې خرڅول روا دي او نه یې لږ څښناک، نه یې ډالی کول روا دي او نه یې سوداګري، بلکې په هر صورت کې دا شراب حرام دي الله تعالی په قران کریم کې فرمایي:

﴿ يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّمَا الْخَمْرُ وَ الْمَيْسِرُ وَ الْاَنْصَابُ وَ الْاَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ فَاجْتَنِبُوْهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ۝ اِنَّمَا يُرِيْدُ الشَّيْطٰنُ اَنْ يُّوْقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَ الْبَغْضَآءَ فِي الْخَمْرِ وَ الْمَيْسِرِ وَ يَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ وَ عَنِ الصَّلٰوةِ فَهَلْ اَنْتُمْ مُّنْتَهُوْنَ۝ ﴾. (المایده : ۹۰ - ۹۱)

ژباړه: ای مومنانو ! شراب، جواري او د پال لپاره غشي ویشتل ټول ناروا دي او د شیطان کار دی، نو له دې شخه ځان وژغورئ، چې کامیابي ترلاسه کړئ، بې شکه شیطان دا غواړي، چې د شرابو او جوارۍ له امله ستاسو په منځ کې دښمني واچوي او تاسو د الله له ذکر او لمانځه شخه منعه کوي، ایا له دې شخه منعه کېدای شئ ؟!

مَنْ شَرِبَ الْخَمْرَ وَسَكِرَ، لَمْ تُقْبَلْ لَهُ صَلاَةٌ أَرْبَعِينَ صَبَاحًا، وَإِنْ مَاتَ دَخَلَ النَّارَ، فَإِنْ تَابَ تَابَ اللَّهُ عَلَيْهِ، وَإِنْ عَادَ، فَشَرِبَ، فَسَكِرَ، لَمْ تُقْبَلْ لَهُ صَلاَةٌ أَرْبَعِينَ صَبَاحًا، فَإِنْ مَاتَ دَخَلَ النَّارَ، فَإِنْ تَابَ، تَابَ اللَّهُ عَلَيْهِ، وَإِنْ عَادَ، فَشَرِبَ، فَسَكِرَ، لَمْ تُقْبَلْ لَهُ صَلاَةٌ أَرْبَعِينَ صَبَاحًا، فَإِنْ مَاتَ دَخَلَ النَّارَ، فَإِنْ تَابَ تَابَ اللَّهُ عَلَيْهِ، وَإِنْ عَادَ، كَانَ حَقًّا عَلَى اللهِ، أَنْ يَسْقِيَهُ مِنْ رَدَغَةِ الْخَبَالِ، يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالُوا : يَا

رَسُولَ اللهِ، وَمَا رَدْغَةُ الْخَبَالِ ؟ قَالَ : عُصَارَةُ أَهْلِ النَّارِ.[۱]

ژباړه: چا چې شراب وڅښل او نشه شو، نو تر څلوېښتو ورځو پورې یې لمونځ نه قبلېږي او که چېرې (له توبې پرته) مړ شي، نو دوزخ ته به داخل شي، او که چېرې توبه وکړي، نو الله تعالی به یې وبښي. بیا که چېرې بیا د دویم ځل لپاره شراب وڅښي او نشه شي، نو څلوېښت ورځې یې لمونځ نه کېږي او که (پرته له توبې) مړ شي، نو دوزخ ته به ځي او که چېرې توبه وباسي نو بښنه به ورته وشي او که چېرې بیا شراب وڅښي، نو الله تعالی دا حق لري، چې د قیامت په ورځ پرې (رَدْغَةُ الْخَبَالِ) وڅښي. صحابه کرامو پوښتنه وکړه: ای د الله رسوله! ردغة الخبال څه شی دی ؟ نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: د دوزخیانو زوې.

## ۹۳- له بې حیا خبرو ممانعت

ګرانو ورونو!

خپله ژبه له بې ځایه خبرو، الزام، غیبت او درواغو وژغورئ. په دې ژبه یوازې د الله تعالی ذکر کوئ او پر رسول الله صلی الله علیه وسلم پرې درود وایاست. له عبدالله بن عمر رضي الله عنهما څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

لَا تُكْثِرُوا الكَلَامَ بِغَيْرِ ذِكْرِ اللهِ فَإِنَّ كَثْرَةَ الكَلَامِ بِغَيْرِ ذِكْرِ اللهِ قَسْوَةٌ لِلْقَلْبِ، وَإِنَّ أَبْعَدَ النَّاسِ مِنَ اللهِ القَلْبُ القَاسِي.[۲]

ژباړه: د الله تعالی له ذکر پرته ډېرې خبرې مه کوئ، ځکه چې د الله تعالی له ذکر پرته ډېرې خبرې زړه سختوي او په خلکو کې له الله تعالی لرې هغه

(۱) سنن ابن ماجه، حدیث : ۳۳۷۷.
(۲) سنن الترمذي، ابواب الزهد، ابعد الناس من الله القلب القاسي، حدیث : ۲۴۱۱ .

څوک دی، چې د سخت زړه خاوند وي
په بل حديث کې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:
إِذَا أَصْبَحَ ابْنُ آدَمَ فَإِنَّ الأَعْضَاءَ كُلَّهَا تُكَفِّرُ اللِّسَانَ فَتَقُولُ: اتَّقِ اللهَ فِينَا فَإِنَّمَا نَحْنُ بِكَ، فَإِنْ اسْتَقَمْتَ اسْتَقَمْنَا وَإِنْ اعْوَجَجْتَ اعْوَجَجْنَا.(۱)

ژباړه: کله چې سهار شي، نو د بدن ټول غړي ژبې ته په ډېره عاجزۍ عرض کوي: زموږ په اړه له الله تعالى وويرېږه، ځکه چې زموږ معامله یې هم له تاسره تړلې ده، که چېرې ته سمه شې، نو موږ به هم سم یو او که ته کوږوالی غوره کړې، نو موږ به هم کاږه یو.

## ۹۴ - د خلکو د عيبونو د راسپړلو ممانعت

ګرانه وروره!
اسلامي شريعت د مسلمانانو عيبونه راسپړل او هغې پسې ګرځېدل يوه سخته ګناه بللې ده، تاسو ترې ځانونه وژغورئ.
الله تعالى په دې اړه فرمايي:
﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اجْتَنِبُوا كَثِيرًا مِّنَ الظَّنِّ إِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ إِثْمٌ وَّ لَا تَجَسَّسُوا﴾.( الحجرات : ۱۲ )
ژباړه: ای مومنانو! له ډېر ګمان څخه ځانونه وژغورئ، ځکه چې ډېر ګمانونه کول ګناه وي او تجسس مه کوئ (د مسلمانانو کمزوري او عيبونه مه لټوئ).
د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما په روايت رسول الله صلى الله عليه

(۱) سنن الترمذي: ابواب الزهد، ما جاء في حفظ اللسان، حديث : ۲۴۰۷ .

وسلم فرمايي:

مَنْ سَتَرَ عَوْرَةَ أَخِيهِ الْمُسْلِمِ، سَتَرَ اللَّهُ عَوْرَتَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، وَمَنْ كَشَفَ عَوْرَةَ أَخِيهِ الْمُسْلِمِ، كَشَفَ اللَّهُ عَوْرَتَهُ، حَتَّى يَفْضَحَهُ بِهَا فِي بَيْتِهِ.[1]

ژباړه: څوک چې د یو مسلمان ورور عیب پټ کړي، نو الله تعالی به د قیامت په ورځ د هغه عیب پټ کړي، او څوک چې د خپل مسلمان ورور عیب راوسپړي، نو الله تعالی به يې عیب راوسپړي، تر دې چې په خپل کور کې به يې رسوا کړي.

## ۹۵- د ساز او سرود زهر

ګرانه وروره!

ساز او سرود الله تعالی حرام ګرځولی دی. دا په زړه کې سختي راولي. په دې اړه الله تعالی فرمايي:

﴿وَ مِنَ النَّاسِ مَنۡ يَّشۡتَرِىۡ لَهۡوَ الۡحَدِيۡثِ لِيُضِلَّ عَنۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ بِغَيۡرِ عِلۡمٍ ‌ۖ وَّ يَتَّخِذَهَا هُزُوًا‌ ؕ اُولٰٓـئِكَ لَهُمۡ عَذَابٌ مُّهِيۡنٌ‏۝ وَ اِذَا تُتۡلٰى عَلَيۡهِ اٰيٰتُنَا وَلّٰى مُسۡتَكۡبِرًا كَاَنۡ لَّمۡ يَسۡمَعۡهَا كَاَنَّ فِىۡۤ اُذُنَيۡهِ وَقۡرًا‌ ۚ فَبَشِّرۡهُ بِعَذَابٍ اَلِيۡمٍ‏۝﴾. (لقمان: ٦-٧)

ژباړه: او ځینې په خلکو کې داسې دي، چې بې ځایه خبرې اخلي، چې په ناپوهۍ خلک د الله تعالی له دین څخه منعه کړي او مسخره يې وګرځوي، ددوی لپاره دردوونکی عذاب دی کله چې دوی ته د الله تعالی ایتونه ولوستل شي، نو کبر کوي او مخ اړوي، ګویا دوی خو هیڅ نه دي اورېدلي، لکه ددوی په غوږونو کې چې دروندوالی وي، نو دوی ته د دردوونکي عذاب زېری ورکړئ.

(۱) سنن ابن ماجه: الحدود، الستر علی المومن، حدیث: ۲۵۴۶.

په یو حدیث کې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:
مَنْ قَعَدَ إِلَى يَسْتَمِعُ مِنْهاَ صَبَّ اللهُ فِي أُذُنَيْهِ الآنُكُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.(۱)
ژباړه: څوک چې د سندرو په مجلس کې کېناسته او سندره یې واورېده، نو الله تعالی به ورته د قیامت په ورځ په غوږونو کې ویلې شوې سیکه واچوي.

## ۹۶- د ظلم حرمت

ګرانه وروره!
الله تعالی ډېر مهربانه دی، په خپل ځان یې رحم فرض کړی او ظلم یې حرام کړی دی. له جابر رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:
اتَّقُوا الظُّلْمَ، فَإِنَّ الظُّلْمَ ظُلُمَاتٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.(۲)
ژباړه: له ظلم څخه ځان وساتئ، ځکه چې ظلم د قیامت په ورځ تورې تیارې دي.
په بل حدیث کې فرمایي:
أَتَدْرُونَ مَا الْمُفْلِسُ؟ قَالُوا: الْمُفْلِسُ فِينَا مَنْ لاَ دِرْهَمَ لَهُ وَلاَ مَتَاعَ، فَقَالَ: إِنَّ الْمُفْلِسَ مِنْ أُمَّتِي يَأْتِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِصَلاَةٍ، وَصِيَامٍ، وَزَكَاةٍ، وَيَأْتِي قَدْ شَتَمَ هَذَا، وَقَذَفَ هَذَا، وَأَكَلَ مَالَ هَذَا، وَسَفَكَ دَمَ هَذَا، وَضَرَبَ هَذَا، فَيُعْطَى هَذَا مِنْ حَسَنَاتِهِ، وَهَذَا مِنْ حَسَنَاتِهِ، فَإِنْ فَنِيَتْ حَسَنَاتُهُ قَبْلَ أَنْ يُقْضَى مَا عَلَيْهِ أُخِذَ مِنْ خَطَايَاهُمْ فَطُرِحَتْ عَلَيْهِ، ثُمَّ

(۱) الجامع الصغير: ۲ \ ۱۶۳.
(۲) صحيح مسلم، البر، تحريم الظلم، حديث: ۲۵۷۸.

طُرِحَ فِي النَّارِ.[۱]

ژباړه: ایا پوهیږئ چې مفلس څوک دی؟ صحابه کرامو عرض وکړ: په موږ کې مفلس هغه څوک دی، چې له چا سره نه درهم، نه دینار او نه څه سامان وي. رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: (نه داسې نه ده) بې شکه زما په امت کې مفلس هغه څوک دی، چې د قیامت په ورځ به له روژو، لمونځونو او زکات سره (خو له دې سره سره به) په داسې حال کې راشي، چې چا ته به یې کنځلې کړې وي، په چا به یې بهتان پورې کړی وي، د چا به یې مال خوړلی وي، د چا به یې وینه تویه کړې وي او څوک به یې وهلی وي، (هغو مظلومانو ته) د ده نېکي به ورکړل شي، کله چې له ده سره نېکي ختمه شي او د خلکو حقوق پرې پاتې شي، نو د هغوی ګناه به پر ده واچول شي، بیا به دوزخ ته وغورځول شي.

## ۹۷- د خندولو لپاره دروغ ویل

ګرانه وروره!

رښتینولي نجات او دروغ د بربادۍ لاره ده، تر دې چې د خلکو د خندولو لپاره هم دروغ ویل روا نه دي. رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

وَيْلٌ لِلَّذِي يُحَدِّثُ فَيَكْذِبُ لِيُضْحِكَ بِهِ الْقَوْمَ، وَيْلٌ لَهُ وَيْلٌ لَهُ.[۲]

ژباړه: ویل (تباهي، بربادي او د دوزخ کنده) دی، د هغه شخص لپاره چې کومه خبره کوي، نو دروغ وایي، د دې لپاره چې خلک پرې وخندوي، ویل دی دده لپاره، ویل دی دده لپاره.

---

(۱) صحیح مسلم، البر، تحریم الظلم، حدیث: ۲۵۸۱.

(۲) سنن ابي داود، حدیث: ۴۹۹.

## ۹۸ - له غوسې څخه ممانعت

ګرانه وروره ! اسلامي شریعت مسلمانان له غوسې څخه هم منعه کړي دي او په دې اړه یې تاکید کړی دی. ابو هریرة رضي الله عنه فرمايي، چې یو تن د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضر شو او عرض یې وکړ:

أَوْصِنِي قَالَ: لاَتَغْضَبْ، فَرَدَّدَ مِرَارًا قَالَ : لاَتَغْضَبْ.[1]

ژباړه: ما ته وصیت وکړئ، رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: غوسه مه کوه. هغه به بیا بیا خپله پوښتنه تکراروله، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: غوسه مه کوه.

په بل حدیث کې فرمايي:

إِذَا غَضِبَ أَحَدُكُمْ وَهُوَ قَائِمٌ فَلْيَجْلِسْ فَإِنْ ذَهَبَ عَنْهُ الْغَضَبُ وَإِلاَّ فَلْيَضْطَجِعْ.[2]

ژباړه: کله چې په تاسو کې څوک غوسه شي، که ولاړ وي نو هغه دې کېني او که غصه ترې لاړه نو ښه ده او که داسې نه وه، نو څملي دې.

## ۹۹ - د انځور جوړولو ممانعت

عبدالله بن عباس رضي الله عنهما فرمايي، چې ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه واورېدل:

«كُلُّ مُصَوِّرٍ فِي النَّارِ، يُجْعَلُ لَهُ بِكُلِّ صُورَةٍ صَوَّرَهَا نَفْسٌ تُعَذِّبُهُ فِي جَهَنَّمَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: فَإِنْ كَانَ لَا بُدَّ فَاعِلاً، فَاصْنَعِ الشَّجَرَ وَمَا لَا

---

(۱) صحیح البخاري: الادب، الحذر من الغضب، حدیث : ۲۱۱۲.

(۲) سنن ابي داود: الادب، مایقال عندالغضب، ح: ٤٧٨٢.

رُوحَ فِيْهِ.[1]

ژباړه: هر عکس جوړوونکی دوزخي دی، د هر هغه عکس په بدل کې چې هغه جوړ کړی وي، یو نفس به ترې جوړ شي او دوزخ کې به ورته عذاب ورکول کېږي، ابن عباس رضي الله عنهما وفرمایل: پس که چېرې تاسو ضرور عکس جوړوئ، نو د ونې او یا داسې نورو شیانو عکس جوړ کړئ، چې ساه ونه لري.

په بل حدیث کې له عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی:

قَالَ وَعَدَ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم جِبْرِيلُ فَرَاثَ عَلَيْهِ حَتَّى اشْتَدَّ عَلَى النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم فَخَرَجَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم فَلَقِيَهُ فَشَكَا إِلَيْهِ مَا وَجَدَ، فَقَالَ: لَهُ إِنَّا لاَ نَدْخُلُ بَيْتًا فِيهِ صُورَةٌ، وَلاَ كَلْبٌ.[2]

ژباړه: یو ځل جبریل علیه السلام له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د راتګ وعده وکړه، هغه په راتګ کې وځنډېده، تر دې چې دا انتظار په رسول الله صلی الله علیه وسلم ګران او سخت شو، کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم بهر راووت، نو جبریل علیه السلام ورسره مخ شو، رسول الله صلی الله علیه وسلم ترې ددې په اړه شکایت وکړ. جبریل علیه السلام ورته وفرمایل: موږ هغه کور ته نه ننوځو، چې په کوم کور کې انځور او سپی وي.

(۱) صحیح البخاري: البیوع، بیع التصاویر، حدیث: ۲۲۲۵.
(۲) صحیح البخاري: اللباس، باب لا تدخل الملائکة بیتاً فیه صورة، حدیث: ۵۹٦.

# ۱۰۰ - مرګ سخت دی خو خلاصون ترې نه شته

زما ګرانو ورونو !

انسان دې نړۍ ته د تل پاتې اوسېدو لپاره نه دی راغلی، یوه ورځ به د اخرت په لور سفر کوي، د نړۍ ستر پاچاهان هم له دې فاني دنیا تللي دي، الله تعالی په لاندې ایت کې مرګ ته او دا چې اصلي کامیابي کومه ده، اشاره کړې. فرمايي

﴿ كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ ۗ وَ اِنَّمَا تُوَفَّوْنَ اُجُوْرَكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۗ فَمَنْ زُحْزِحَ عَنِ النَّارِ وَ اُدْخِلَ الْجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ ۗ وَ مَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ اِلَّا مَتَاعُ الْغُرُوْرِ ﴾.

( ال عمران : ۱۸۵ )

ژباړه: ټول ذي روح به د مرګ څکه کوي او د قیامت په ورځ به درته پوره بدله درکول کېږي، پس څوک چې له دوزخ وژغورل شو او جنت ته ولاړ، نو هغه بې شکه بریالی شو او دنیوي ژوند خو د فریب سامان دی.

په یو حدیث کې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

تاسو هغه شی ډېر یادوئ، چې خوندونه له منځه وړي، یعنې مرګ.

له عبدالله بن عمر رضي الله عنهما څخه روایت دی، چې یو ځل زه رسول الله صلی الله له اوږې ونیولم او راته یې وفرمایل:

كُنْ فِي الدُّنْيَا كَأَنَّكَ غَرِيبٌ، أَوْ عَابِرُ سَبِيلٍ.[1]

ژباړه: په دنیا کې داسې اوسېږه، لکه ته چې یو مسافر او یا لاروی.

پای

(۱) صحيح البخاري: الرقاق، قول النبي كن في الدنيا، حديث : ۶۴۱۲.